# سریزه

**الحمدلله رب العلمین، والصلواة و السلام علی امام الهدة المرسلین، و علي آله و اصحابه الذین آنا روا الدنیا بنـور الدین و علي من تبعهم باحسان و نشـر الهدی الی یوم الدین اجمعین.**

له لوی توانا خدای(ج) څخه ډېر شکر گـزار یم چې ماته یـې بیا هـم د دې کتاب لیکلـو تـوانایي راوبښـله. ژبه د پوهېدنې او پوهونې یوه وسېله ده دا چې الله(ج) ادم (ع) له خاورې څخه جوړ کړ او وروسته یې ساه ور دننه کړه کله چې په ادم (ع) کې روح پیدا شوه او انسان ترېنه جوړ شو نو الله (ج) زر کسبه د هغـوی له نومونو سره ور وښودل، نو ویلی شو چې ژبه د انسان له پیدایښت سره سمه پیدا شوې ده؛ له بلې خوا انګلـیسي هغه نړیواله ژبه ده چې په اوسنۍ او عصري نړۍ کې ډېره زیاته اړتیا ورته لېدل کېـږي، نو زما هـم دا یوه ارزو وه، چې د انګلیسي ژبې ګرامر به د خپلې خوږې پښتو ژبې له ژباړې سره لیکم ځکه زموږ په ټولنه کې یو تعداد پښـتانه وروڼه او خوېندې له یو لړ ستونزو سره مخ دي نو د دې کتاب سره به ان شاء الله د ډېـرو وروڼو او خوېندو ستونزه هـواره شي. لکه څنګه چې انګلـیسي یوه نړیواله او علمي ژبه ده نو باید په زده کړه کې ورڅخه ناوړه ګټه وانه خېستل شي.

زموږ ګران هېواد له څه باندي تېرو درې لسیـزو راهـیسي د اور په لمبو کې سوځېدلـی، وران شوی، د ښـوونــې او روزنې کچه پکې ډېـره ټیټه ده نو د دې دردېدلی هېـواد جوړونکې او کونډو یتیمانو د اوښکو پاکوونکي به همدا ځوان تحصیل یافته نسل وی، هرڅومره چې ښوونه او روزنه پرمختګ کوي په همدې ډول مو هېواد هم د پرمختګ په لوری راونیږی او د پردیو څخه به په امن، بې احتیاجه او سوکالی کې ژوند کوی؛ پښتو متل دی چې(پردی کټ تر نیمو شپو وي) پردی هېڅ وخت نشي خپل کېدای، نه به خپل شی، او نه به پرمختګ راته راوړی ترڅو چې مو پخپله مټه خپل هېواد نه وی پیاوړی کړی او په پوره صداقت او سپـېڅلې احساس مـو کار نه وي ورته کـړی.

له بلي خوا اوس محال زموږ په ټولنه کې تهذیب ډېر تنزیل کړی دی، چې د دې عمده عوامل د پردیو تقلیدونه دي او د دې ناوړه ارمغان راوړل هم د پردیو هدف او کار دی چې دا تقلیدونه زموږ د ځوانو نسلونو په فکرونو، عقیدو، اخلاقو او ښوونه او روزنه باندي ډېر ناوړه او بده اغېزه کړې ده؛ دا یو داسي

ویروس دی چې زموږ د ټولنې ډېر کسان پرې اخته دي نو له دې سره مبارزه او د دې مخنیوی هم د تحصیل یافته او مفکرو افرادو په واسطه کېدای شي.

لکه څنګه چې دا کتاب ما له مختلفو ګرامري کتابونو څخه راټول کړی او پخپله مې ډېزاین کړی، کمپیوټرایزډ کړی او تألیف کړی نو که چېري د ویونکي په نظر کومه نېمګړتیا ورغله لومړی به ښېنه راته کوي او وروسته به حتماً ما ته د برېښنالیک یا د ټیلیفون په ذریعه احوال راکوي ترڅو په راتلوونکي چاپ کې اصلاح شي او دا به مو په ما تل پاتې او نه هېرېدونکي لطف او احسان وي.

په درناوي

**انجنیر خلیل احمد« درویش»**

برېښنالیک: Khalil.dervish@gmail.com

ټیلیفون: 0788480493 او 0705337534

# مننه او کور ودانی

له خپل ګران پلار دوکتور محمد رحیم«رنځورمل»، مشر ورور ډاکتر زلال احمد«رنځورمل»، انجنیر نصیر احمد«پوپل» او له خپلو خوږو ملګرو انجنیر نصیر احمد «حقمل»، انجنیر میرویس«صالح»، انجنیر رفیع الله«باور»، انجنیر میرویس«ایوبي»، انجنیر احمد خالد«حکیمي»، انجنیر عبدالرحمن «محمودي»، انجنیر موسی کلیم«نظري»، انجنیر احمد فهیم«ترین»، استاد عبدالمالک«شفق»، استاد محمدالله «نادري»، قاضي عبدالمتین«افغانمل»، احمد فرید«پوپل»، استاد محمد هارون«پوپل»، عزیز الله«فیصل» او د کندهار پوهنتون د ژورنالېزم پوهنځي استاد پوهنیار صبغت الله«غورځنګ»، د ښوونې او روزنې پوهنځي استاد پوهنیار عبدالصمد«حامد»، په اخیر کې په خاصه توګه د کندهار پوهنتون د انجینري پوهنځي رئیس ښاغلي پوهنیار عبدلحبیب«غفورزی» او د کندهار پوهنتون علمي مرستیال ښاغلی پوهنیار انجنیر عبدالتواب«بالاکرزي» له هڅونې څخه ډېره مننه کوم چې تل یې راته ښې مشورې راکړي دي.

په درنښت

**انجنیر خلیل احمد« درویش»**

# د کتاب په هکله څو کرښې

په دفتر کې په کار بوخت وم چې ګران خلیل احمد«درویش» راغي او خپل د کتاب(انګلیش ګرامر) په باب یې راته یادونه وکړه چې پر یاد کتاب یې ډیري خواري ګاللې او هغه یې د چاپ تر بریده چمتو کړي دي؛ ډیر خوشحاله شوم او ده ته مې مبارکي وویله، کتاب مې په داسي حال کې چې د ده په زیار او زحمت ډیر خوشحاله وم، وکتي.

کتاب چې په(260) مخونو کې د انګلیسي ژبي ګرامر په اساساتو باندي لیکل شوي دي، له ځانه سره پښتو ژباړه هم لري چې د انګلیسي ژبي د هغه مینه والو لپاره چې د مقدماتي حالت څخه یو څه مخته شوي وي ډیر مؤثر دی، کتاب په روانه ژبه لیکل شوي او ویل یې د مینه والو لپاره ګټور او مفید دی.

زه د ګران «درویش» دا هلې ځلې ستایم چې د دې کتاب په لیکلو او تدوین کې یې کړي دي؛ دا چې نوموړي تراوسه پوري د انجنیري پوهنځي په دریم ټولګی کې محصل دي د هیواد او او خلګو د خدمت لپاره ده ته نور توفیق غواړم او په راتلوونکي کې د نورو سترو بریاوو هیله ورته کوم.

په درنښت

**پوهنیار انجنیر عبدالتواب«بالاکرزی»**

**د کندهار پوهنتون علمي مرستیال**

# لنډه پېژندنه

خلیل احمد "درویش" د ډاکتر محمد رحیم "رنځورمل" زوی د مرحوم فیض الله (پوپل) لمسی او د مرحوم محمد سرور خان (ابدالي) کړوسی، چې په ۱۳۷۱ لمریز کال د غزنی ولایت، قره باغ ولسوالی د کندلخو په نومي کلي په یوه درنه او علمي کورنۍ کې زیږېدلی چې د نسب اصلی سلسله یې د کندهار ولایت په شاولي کوټ ولسوالۍ پوري اړه لري درویش صاحب خپلی لمړنۍ او ابتدايي زده کړې د بي بي خدیجې الکبرای(رض) په ابتدایي ښوونځي کې او ثانوې زده کړې یې د سلطان محمود غزنوی په عالی لیسه کې په لمړۍ درجه پای ته رسولي دي.

وروسته له فراغت څخه د ښو او عالي نمرو په لاس ته راوړلو سره د خپلي علاقې او خوښې سره سم د کندهار پوهنتون انجنیری پوهنځي ته بریالی او په ۱۳۹۴ لمریز کال کې یې له همدې پوهنځي څخه د لیسانس په کچه لاسوند(دیپلوم) تر لاسه کړ.

دا چې انګلیسي ژبه یوه معیاري، علمي او نړیواله ژبه ده او زده کړه یې په اوسني عصر کې ضروري برېښي نو د نوموړي د پرلپسې زیار او زحمت نتیجه وه چې خپل باکیفیته او په علمي معیار برابر اثر یې د وخت له غوښتنو سره سم د لوستونکو لاس ته ورساوو.

زما په نظر به د درویش صاحب دغه اثر د زده کوونکو او لوستونکو د علمي کچې پر وده او ترقي زیاته اغېزه ولري او هیله من یم چې د انګلیسي ژبې د ښې او چټکي زده کړي لپاره به د شاګردانو او لوستونکو مینه والو او پلرونو د خپلو بچیانو د ښې او باکیفیته زده کړي لپاره له همدې اثر څخه ګټه پورته کړی.

په درنښت

**استاد محمد اسماعیل«سعادت»**

غزني، افغانستان

# ډالـــۍ

- ♥ د قـدر وړ مور او پلار ته چې زما په ښـوونه او روزنه کې يې بې حده زياتي هڅې کـړي او هـيڅ ډول قرباني يې راڅخه نده سپمولې.
- ♥ هغـو پلرونو او مېندو ته چې د خپلو ماشومانو په ښـوونه او روزنه کې هڅې کوي.
- ♥ خپل درانه استاد پوهنيار عبدالستار «کاکـړ» ته.

# Language ژبه

Language is a social phenomenon which is used for understanding.
ژبه یوه ټولنېزه پدېده ده چې د پوهېدنې لپاره پکار وړل کېږي.

**Grammar**: Grammar is the series of rules regulations which is used for correct writing, reading and speaking.
**گرامر**: گرامر عبارت له یو لړ مقرراتو او اصولو څخه دی، چې د صحیح لیکلو، لوستلو او خبرې کولو لپاره پکار وړل کېږي.

Or: The scientific study of a language is called Grammer.
**اویا**: د یوې ژبې علمي زده کړې ته گرامر وایي.

**Alphabet**: A set of letters arranged in order for forming words is called alphabet.
**الفباء**: د تورو یوه مجموعه چې د کلیمو د جوړولو لپاره پکار وړل کېږي الفباء بلل کېږي.

Or: Alphabet is the basic sound of a language and each sound is considered as a letter.
**اویا**: الفباء د یوې ژبې اساسي غږ دی او هر غږ د یو توري په حیث مطرح کېږي.

**Letter:**The conventional alphabetical character or a written symbol used to represent a speech sound and constituting a unit of an alphabet is called letter.

**توری**: قراردادي الفبایي جوړښت اویا یو لیکنې سمبول "چې" د خبرې غږ بیانولو لپاره استعمالېږي او د الفباء یوه برخه تشکیلوي توری بلل کېږي.

Or: The basic sound of a language is called letter.
**اویا**: د یوې ژبې اساسي غږ ته توری وایي.

- **The Letters are commonly of two kinds in English Language.**
- په انگلیسي ژبه کي توري عموماً په دوه ډوله دي:

## Capital Letters ( Uppercase Letters) لوي توري:a

هغه توري دي چې په غټ او برجسته شکل لیکل کېږي او په لاندی ډول دي.

A, B, C, D, E, F, G, H, I, J, K, L, M, N, O, P, Q, R, S, T, U, V, W, X, Y, Z.

- لوی توري په لاندي ځایونو کې استعمالېږي:

۱: د یوې جملې د لیکلو په شروع کې استعمالېږي:

Ex: <u>W</u>e are students. مثال: موږ شاگردان یو.

۲: دخاصو اسمونو او صفتونو د لمړي توري د لیکلو لپاره استعمالېږي:

Ex: <u>A</u>ziz, <u>A</u>fghani, <u>S</u>amiullah. مثال: عزیز، افغاني، سمیع الله.

۳: د کال د میاشتو او د اوونۍ د نومونو د لمړي توري د لیکلو لپاره استعمالېږي:

Ex: <u>S</u>unday, <u>F</u>riday, <u>M</u>arch, <u>A</u>pril.

۴: د (I) فاعلي ضمیر د لېکلو لپاره استعمالېږي.

Ex: <u>I</u> am a student. مثال: زه یو شاگرد یم.

۵: د مخففاتو د لیکلو لپاره استعمالېږي.

Ex: U.E.A, UN.

۶: د لقبونو د لومړي توري د لیکلو لپاره استعمالېږي.

Ex: The <u>K</u>ing of India. مثال: د هند پادشاه.

Ex: Abdul Bari (<u>J</u>ahani). مثال: عبدالباري (جهاني).

Ex: Abobaker <u>S</u>ediq. مثال: ابوبکر صدیق.

۷: د کتابونو د نومونو د لیکلو لپاره استعمالېږي.

Ex: <u>Q</u>uran, <u>Z</u>aboor, <u>T</u>orat etc… مثال: قــران، زبــور، تورات او نور...

۸: د ملي و رځو او عمومی رخصتیو لپاره استعمالېږي.

Ex: Eid, Nawrooz, Ashora.

مثال: عـید، نـوروز، عـاشـورا.

۹: د علومو او ژبو د نومونو لپاره استعمالېږي.

Ex: Biology, Pashto, Arabic.

مثال: بیـولـوژي، پـښـتو، عـربي.

۱۰: د غرونو او دریابونو د نوم دلیکلو لپاره استعمالېږي.

Ex: Kunar River, Hindokush Mountain, Ba Ba Mountain etc...

مثال: کونړ دریاب، هندوکش غـر، بابا غـر اونور...

۱۱: د نداء د توري د لیکلو لپاره استعمالېږي.

Ex: Oh!, Pooh!

مثال: آه!، پوه!

## b : واړه توري (Small letters (lowercase letters

واړه توري هغه توري دي چې په غیر برجسته شکل لیکل کېږي او معمولاً په کتابونو، مجلو، اخبارونو او نورو لیکنو کې ورڅخه ګټه اخیستل کېږي.

a, b, c, d, e, f, g, h, i, j, k, l, m, n, o, p, q, r, s, t, u, v, w, x, y, z.

**Note**: There are 26 letters in English language.

نــــوټ: په انګلیسی ژبه کې ۲۶ توري دي.

ـ په انګلیسي ژبه کې توري د تلفظ له لحاظه په درې برخو وېشل شوي دي:

۱: غــږ لــرونــکــي تــوري (Vowel letters).

۲: نیمه غږ لرونکي توري (Semi vowel letters).

۳: بــې غــږه تــوري (Consonant letters).

- **Vowel letters:**

Vowel letters are those which make syllables in a word, It means every vowel letters can make a syllable or sound alone.

- غږلرونکي توري:

غږلرونکي توري هغه دي چې په يوه کليمه کې هيجا(سيلاب) جوړوي، هغه په دې مانا چې هر غږلرونکی توری په تنهايي سره کولای شي يوه هجا يا غږ تشکيل کړي.

There are five vowel letters in English language which are : (A, E, U, I, O).

په انگليسي ژبه کې پنځه غږلرونکي توري دي چې عبارت دي له: (A, E, U, I, O) څخه.

- **The role of vowel letters.** د غږلرونکو تورو نقش.

1. All the word in English should have at least one vowel to be pronounced.

۱. د انگليسي ژبې ټولي کليمې حد اقل بايد د يو غږلرونکي درلودونکي وي ترڅو تلفظ شي.
(هيڅ کليمه نشو کولای بې د غږلرونکي توري له موجوديت څخه تلفظ کړو).

غږلرونکي توری نلري ↓ غږلرونکي توری لري ↓↓↓

Ex: rng ____________ Orange

2. Vowel letters causes syllabication in the word.

۲. غږلرونکي توري په کليماتو کې د هجا بندي باعث‌گرځي(کليمې د اواز له لحاظه تقسيم بندي کوي).

Syllable ↓ Syllable ↓

Ex: Report = Re ____ port.

Syllable ↓ Syllable ↓

Ex: Moral = Mo ___ ral.

3. For the words that are started with a vowel letter use article (an).

۳. د هغو کلیماتو لپاره چې په غږ لرونکي تورو شروع شوي وي د (an) تعریف توري څخه استفاده کیږي.

غږ لرونکي توری ↑ Ex: an orange.

غږ لرونکي توری ↑ Ex: an apple.

- **Semi vowel letters:( w, y).** نیمه غږ لرونکي توري: **( w, y).**

These letters also can make a sound in the words.

همدارنگه دغه توري کولای شي په کلیماتو کې غږ تشکیل کړي.

Ex: pharmacy.

**Note**: the two letters (w ,y) are sometime vowel and sometime consonant in this reason they are called semi vowels. that is to say when they are used at the beginning of the words to start a syllable, are consonant, but at the middle of a word or at the end, are vowels.

نوټ: دوه توري چې عبارت دي له (W, Y) څخه، ځیني وخت بې غږه او ځیني وخت غږ لرونکي وي نو په دې دلیل هغه ته نیمه غږ لرونکي توري وایي. یعنې کله چې دغه (توري) د هجایي تورو په شروع کې راشي بې غږه دي مگر کله چې د کلیمو په مابین او اخېر کې راشي غږ لرونکي دي.

Ex: window, word, yellow : (consonant بې غږه ).

Ex: Spy, Sky, Cycle, Why : (vowel غږ لرونکي ).

- **Consonant letters.** (بې غږه توري)

Consonant letters are those which can not pronounced in a word without vowels.

بې غږه توري هغه توري دي چې د غږ لرونکو تورو له موجودیت څخه پرته نه تلفظ کیږي.

**Or:** Consonant letters are those which can not make a sound or syllable alone.

اویا: بې غږه توري هغه دي چې نشي کولاي په تنهایي سره غږ یا هیجا (سیلاب) تشکیل کړي.

- Except five vowel letters all the rest are consonant in English language.

- په انګلیسي ژبه کې له پنځو غږ لرونکو تورو پاتي ټول بې غږه دي.

**Note:** Syllable is the unite of classification of a word according to its voice (sound).

نوټ: د تلفظ او غږ مطابق د کلیماتو د تقسیم واحد ته هجاء وایي.

- The consonant letters are nineteen letters in English language, those are consist in:

Bb, Cc, Dd, Ff, Gg, Hh, Jj, Kk, Ll, Mm, Nn, Pp, Qq, Rr, Ss, Tt, Vv, Xx, Zz.

- په انګلیسي ژبه کې نه لس (۱۹) بې غږه توري دي چې عبارت دي له:

Bb, Cc, Dd, Ff, Gg, Hh, Jj, Kk, Ll, Mm, Nn, Pp, Qq, Rr, Ss, Tt, Vv, Xx, Zz.

- **Explanation of consonant letters:**

- **د بې غږه تورو تشریح:**

۱: د (B) توری پهر پښتو ژبه کې د (ب) غږ ورکوي.

Ex: Boy, Broom.

نوټ: دغه توري په دوه حالته کي خاموش (بي غږه) دي:

a. په هغه کلیمو کې چې د (b) توری د (t) د توري مخکي راشي.

بې غږه

Ex:Debt, Doubt

b. په هغو کلیمو کې چې د (b) توری د (m) د توري څخه وروسته په اخېر کې راشي.

بې غږه ↙ ↘

Ex: Com<u>b</u>, Thum<u>b</u>.

۲: د (C) توری په پښتو کې د ( س، ک) غږ ورکوي د (e ,i ,y) څخه مخکې (س) له هغه بغیر (ک) تلفظ کېږي.

Ex: <u>C</u>ity, <u>C</u>ar, <u>C</u>ycle.

↓ س ↓ ک ↓ س

- د (C) توری له (H) سره یوځای استعمالېږي او د (ش، چ، ک) غږ ورکوي.

Ex: S<u>ch</u>ool, Mar<u>ch</u>, <u>Ch</u>oice, Me<u>ch</u>anic.

↓ ک ↓ چ ↓ چ ↓ ک

- د (C) توری ځیني وخت له نورو تورو سره یوځای کېږي د (ش) غږ ورکوي.

Ex: Spe<u>cia</u>l, An<u>cie</u>nt, O<u>cea</u>n, Cons<u>cio</u>us..(ش)

۳: د (D) توری په پښتو کې د (ډ) غږ ورکوي.

Ex: <u>D</u>oor, <u>D</u>ram.

- ځیني وخت د (D) توري د (U) د توري مخته راځي د (ج) غږ ورکوي.

Ex: E<u>du</u>cation, Gra<u>du</u>ate.

↓ ج ↓ ج

- د (D) توری د (G, J) له توري څخه مخکې نه تلفظ کېږي.

Ex: A<u>d</u>jective, bri<u>d</u>ge.

↓ بې غږه ↓ بې غږه

- د (D) توری ځيني وخت له (H) سره د (ض) غږ ورکوي.

Ex: Ramadhan. .(رمضان)

۴: د (F) توری په پښتو کې د (ف) غږ ورکوي.

Ex: Fan, Family, Father.

- د (F) توری د (of) په کلیمه کې د (v) غږ ورکوي.

Ex: A part of the book.
د(v)غږ ورکوی

۵: د (G) توری د (ج) غږ ورکوي کله چې د (E ,I) څخه مخکې راشي کله (گ) او کله (ج) تلفظ کېږي.

Ex: Girl, Gender, Get.
گ ج گ

- هغه وخت چې د (G) توری د (y) څخه مخکې راشي همېشه (ج) تلفظ کېږي.

Ex: Geology, Gymnastic.

- کله چې د (G) توری د نورو تورو څخه مخکې راشي همېشه (گ) تلفظ کېږي.

Ex: Garden, Grass, Good.

- هرکله چې د (G) توری د (m) او (n) له توري مخکې په سر يا په اخېر د کليمې کې راشي نه تلفظ کېږي.

Ex: Sign , Diaphragm.
بې غږه بې غږه

۶: د (H) توری په پښتو ژبه کې د (ح، ه) غږ ورکوي.

Ex: Hide, Hand, Hen.

- د (H) توری ځینې وخت بې غږه وي.

Ex: <u>H</u>our, <u>H</u>onor.

↓ بې غږه ↓ بې غږه

- د (H) توری په ترکیب شوي ډول له نورو تورو سره یوځای کېږي او مختلف غږونه ورکوي.

Exs: a: Lau<u>gh</u>, Rou<u>gh</u>

↓ ف ↓ ف

b: <u>Sh</u>e, <u>Sh</u>ine

↓ ش ↓ ش

c: <u>Ch</u>aracter, S<u>ch</u>ool.

↓ ک ↓ ک

d: <u>R</u>hyme, <u>R</u>heumatism.

↓ بې غږه ↓ بې غږه

e: Biogra<u>ph</u>y, <u>Ph</u>one.

↓ ف ↓ ف

f: <u>Ch</u>alk, <u>Ch</u>oice.

↓ چ ↓ چ

۷: د (J) توری په پښتو کې د (ج) او (ژ) غږ ورکوي.

Ex: <u>J</u>ob, <u>J</u>ail, <u>J</u>am.

۸: د (K) توری په پښتو کې د (ک) غږ ورکوي.

Ex: <u>K</u>eep, <u>K</u>ick.

- کله چې د کلیمې په شروع کې د (K) توری د (N) د توري مخکې راشي نو (K) نه تلفظ کېږي.

Ex: <u>K</u>nife, <u>K</u>nee, <u>K</u>noll.

↓ بې غږه ↓ بې غږه ↓ بې غږه

۹: د (L) توری په پښتو کې د (ل) غږ ورکوي.

Ex: Lure, like, look.

- د (L) توری اکثره وخت د کلیمې په منځ کې نه تلفظ کېږي.

Ex: Chalk, walk, could.

۱۰: د (M) توری په پښتو کې د (م) غږ ورکوي.

Ex: Mother, Mobile.

- کله چې د (M) توري د (N) له توري څخه مخکې راشي نه تلفظ کېږي.

Ex: Mnemonics.
بې غږه

۱۱: د (N) توری په پښتو کې د (ن) غږ ورکوي.

Ex: Nation, Near .

- کله چې د (N) په اخیر د کلیمې کې د (M) له توري وروسته راشي نه تلفظ کېږي.

Ex: Autumn, Contemn.
بې غږه بې غږه

۱۲: د (P) توری په پښتو کې د (پ) غږ ورکوي.

Ex: Poem, Paper, Part.

- د (P) توري ځیني وخت د (H) له توري سره یوځای کېږي د (ف) غږ ورکوي.

Ex: Phone, Pharmacy.

- که چېري د (P) توري د کلیمې په شروع کې د (s, t, n) له تورو څخه مخکې راشي نه تلفظ کېږي.

Ex: Pneumonic, Psychology, Ptomaine.
بې غږه بې غږه بې غږه

۱۳: د (Q) توری په پښتو کې د (ک، ق) غږ ورکوی او اکثره وخت د (U) له توري سره یوځاي لیکل کیږي.

Ex: Quran, Question, Quite.

- که چیري (Q) له (U) سره په ترکیبي ډول راشي د (K) په څېر تلفظ کیږي.

Ex: Technique, antique.

۱۴: د (R) توری په پښتو کې د (ر ، ړ) غږ ورکوي.

Ex: Read, Room, Road.

- کله چې د (R) له توري وروسته یو بې غږه توری اویا ساکنه (e) په اخیر د کلیمې کې د (R) د توري څخه مخکي راغلی وی په بریتانوي سیستم کې نه تلفظ کیږي.

Ex: Form, Teacher, Ruler.

بې غږه بې غږه بې غږه

- د (R) توری همدارنگه کولای شي د (H) له توري سره یوځاي استعمال شي.

Ex: Rhythm, Rheumatism.

۱۵: د (S) توری په پښتو کې د (س، ص، ث) غږ ورکوي.

Ex: Sound, Start, Single.

- د (S) توری ځیني وخت د کلیمي په سر کې د (U) له توري مخکي د (ش) غږ ورکوي.

Ex: Sure, Sugar. .(ش)

- د (S) توری ځیني وخت د (ز) غږ ورکوي.

Ex: Noisy, Busy, Cousin, Poison. (ز)

- که چیري د (S) توری د (ion)، (uat)، (ure) له ترکیبونو سره راغلي وي اکثره وخت (ژ) تلفظ کیږي.

Ex: Pleasure, Explosion.

- د (S) توری ځيني وخت له (ia) څخه مخکي راځي د (ش) يا (ژ) په څېر تلفظ کېږي.

Ex: Asian, Persian, Controversial.

- د (S) توری په ډېرو ځايونو کې بې غږه وي او نه تلفظ کېږي.

Ex: Crops.

- کله چې د (S) توری د (H) له توري سره يوځای د (ش) غږ ورکوي.

Ex: Shop, Shall, Shine.

۱۶: د (T) توری په پښتو کې د (ت ، ټ ، ط) غږ ورکوي.

Ex: Teacher, Tree, Tear.

- د (T) توری ځيني وخت د (U) له توري مخکي د (چ) غږ ورکوي.

Ex: Picture, Actual, Signature.

- د (T) توری ځيني وخت د (io) او (ia) څخه مخکي استعمالېږي او د (ش) غږ ورکوي.

Ex: International, Action, partial.

- د (T) توری ځيني وخت له (S) څخه وروسته نه تلفظ کېږي.

Ex: Listen, Thistle, Nestle.

په دې مثال کې ( t ) غږ نه ورکوي.

- د (T) توری ځيني وخت له (H) سره يو ځاي کېږي او نه تلفظ کېږي.

Ex: Asthma, Isthmus.

بې غږه بې غږه

۱۷: د (V) توری په پښتو کې د (وي) او (في) غږ ورکوي.

Ex: Verse, Vast, Vine.

۱۸: د (W) توری په پښتو ژبه کې د (و) غږ ورکوي.

Ex: Wag, Waif.

- د (W) توری د کلیمې په شروع کې د (R) د توري مخکې نه تلفظ کېږي.

Ex: Write, Wrong.

بې غږه بې غږه

- د (W) توری د (H) له توري سره یوځای کېږي ځیني وخت د (ح) او ځیني وخت د (و) غږ ورکوي.

Ex: While, What, Whole.

۱۹: د (X) توری په پښتو ژبه کې د (ایګز)، (ایکس) او (اکس) غږ ورکوي.

Ex: Box, Tax, Exam .

اکس ایکس اګز

- د (X) توری د کلیمې په شروع کې د (ز) غږ ورکوي.

Ex: Xylem, Xeric.

۲۰: د (Y) توری په پښتو کې د (ي) غږ ورکوي.

Ex: Young, Yellow, Your.

۲۱: د (Z) توری په پښتو ژبه کې د (ز، ذ، ظ، ض) غږ ورکوي.

Ex: Zero, Zinc, Zone.

- د (Z) توري ځیني وخت د (U) د توري دمخه د (ژ) په څېر تلفظ کېږي.

Ex: Seizure.

# Compound Letters
# ترکیبي توري

Combination of more than one letter which has particular sound are called compound letter.

د یوه توري څخه د زیاتو ترکیب چې مشخص غږ لري ترکیبي توري بلل کېږي.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| Ch | (چ) | Ex: Chalk. | Sio | ( ژ) | Ex: Television. |
| Sh | (ش) | Ex: Shin. | Cie | (ش) | Ex: Ancient. |
| Zh | ( ژ) | Ex: Zhalah. | Th | ( د) | Ex: This. |
| Gh | ( غ) | Ex: Ghazni. | Wh | ( و) | Ex: White. |
| Kh | ( خ) | Ex: Khan. | Du | (ج) | Ex: Education. |
| Ph | (ف) | Ex: Phone. | Su | (ش) | Ex: Suger. |
| Tu | (چ) | Ex: Nature. | Tia | (ش) | Ex: Initiate. |
| Tio | (ش) | Ex: Nation. | Cia | (ش) | Ex: Special. |

# Parts of speech
# د کلام اجزاوي

Words are the base of a language they are put together to make a sense are classified according to the work they in the sentences, these word do in the sentences are called parts of speech.

کلیمې د یوې ژبې د بنسټ حیثیت لري دوی په خپلو کې یوځای کېږي او په جمله کې یو مفهوم جوړوي، چې دغه کلیمې د هغه دندو له مخې، چې دوی په جملو کې ترسره کوي طبقه بندي کېږي چې همدې ته د کلام اجزاوي وایي.

**Or**: Division of words in a language is called parts of speech.

اویا: په یوه ژبه کې د کلیمو وېشنې ته د کلام اجزاوي وایي.

- **The parts of speech are divided in nine parts:**

- **د کلام اجزاوي په نهو برخو وېشل شوي دي:**

1. **Pronoun.** ضمیر.
2. **Verb.** فعل.
3. **Article.** د تعریف توری
4. **Noun.** اسم.
5. **Adjective.** صفت.
6. **Adverb.** قید.
7. **Conjunction.** د ربط توری.
8. **Preposition.** اضافه توری.
9. **Interjection.** د ندا توری.

1) **Pronoun** : pronoun is a word which is used instead of a noun and avoid the repetition of noun.

۱) **ضمیر**: ضمیر هغه کلیمه ده چې د نوم په ځای استعمالیږي او د نوم له تکرار څخه مخنیوي کوي.

Ex: Shfiq is a student. (Shfiq → Noun)

مثال: شفیق یو زده کوونکی. (شفیق → اسم)

Ex: He is a student. (He → Pronoun)

مثال: هغه یو شاگرد دی. (هغه → ضمیر)

2) **Verb:** verb is a word which shows an action, stat, possession, presence or absence in a sentence.

۲) **فعل**: فعل هغه کلیمه ده چې په جمله کې یو عمل، حالت(وضعیت)، ملکیت، موجودیت او نا موجودیت ښکاره کوي.

Or: Verb is a word which shows an action or state of a noun or pronoun.

اویا: فعل هغه کلیمه ده چې د یو اسم یا ضمیر عمل اویا حالت ښکاره کوي.

Ex: Wardag <u>is</u> a beautiful place. مثال: وردگ یو ښکلی ځای <u>دی</u>.

Ex: Amran <u>comes</u> to school every day. مثال: عمران هره ورځ ښوونځي ته <u>راځي</u>.

3) **Article:** article is a word which is used with a noun or adjective and determines them.

۳) **د تعریف توری**: د تعریف توری هغه کلیمه ده چې له نوم اویا صفت سره استعمالېږي او هغوی معینوي.

Or: Article is a letter or group of letters that determine a noun or pronoun.

د تعریف توری یو توری یا گروپ د تورو دی چې یو اسم یا ضمیر مشخصوي.

Ex: <u>The</u> sun. Ex: <u>The</u> glass. Ex: <u>The</u> beautiful.

4) **Noun:** noun is a word which is used as the name of some person, place, animal, or thing.

۴)**اسم**: اسم هغه کلیمه ده چې د شخص، ځاي، حیوان او شي د نومولو په حیث استعمالېږي.

Ex: Asad, Logar, Cow, Table etc… مثال: اسد، لوگر، غوا، مېز او نور...

5) **Adjective:** Adjective is a word which completes the meaning of a noun or qualifies a noun.

۵)**صفت**: صفت هغه کلیمه ده چې د اسم مانا تکمیلوي اویا د هغه ستاینه کوي.

**Or:** Adjective is a word that describes people, things and events or modify a noun or pronoun.

**اویا**: صفت هغه کلیمه ده چې خلک(اشخاص)، شیان او واقعي توصیفوي اویا یو اسم یا ضمیر تنظیموي.

Ex: Kandahar is a <u>big</u> province. مثال: کندهار یو <u>لوی</u> ولایت دی.

**6) Adverb:** Adverb is a word which is used to add something to the meaning of a verb, an adjective, or another adverb.

۴)**قـــيـــد**: قيد هغه کليمه ده چې فعـل، صفت، او يا بل قيد په مانا يو شي زياتوي .(د هغوی مانا تکميلوي).

**Or**: Adverb is a word which is used to describes a verb, an adjective, another adverb or adverbial phrase.

**اويا**: قيد هغه کليمه ده چې فعـل، صفت بل قيد يا قيدي عبارت تشريح کوي.

Ex: Obaid <u>runs</u> fast.(verb). مثال: عـبيـد <u>تېز</u> ځغلي.(فعل).

Ex: He spoke quite <u>correctly</u>.(adverb). مثال: هغه <u>کاملاً په صحيح</u> ډول خبري وکړي(قـيد).

**7) Conjunction:** Conjunction is a word which is used to join two words, two sentences, two phrases, and two clauses.

۶)**د وصل(ربط) توری**: د ربط توری هغه کليمه ده چې د دوو کليمو، دوو جملو، دوو عباراتو، او دوو قضيو وصل کولو لپاره پکار وړل کېږي.

Ex: Abdul Hadi <u>and</u> Karrim are brothers. مثال: عبدالهادي <u>او</u> کريم سره ورونه دي.

**8) Preposition:** Preposition is a word which is used to show the relationship between two persons or things.

۴)**اضافي توری**: اضافي توری هغه کليمه ده چې د دوو اشخاصو اويا شيانو ترمنځ رابطه ښيي.

**Or**: Preposition is a word that shows the relationship of a noun or pronoun to some other words in a sentences.

اويا: اضافي توری هغه کليمه ده چې د اسم يا ضمير اړيکه د نورو کليمو سره په جمله کې ښيي.

Ex: I am <u>in</u> the bazaar . مثال: زه <u>په</u> بازار کې يم.

**9) Interjection:** Interjection is a word or phrase that expresses emotion or exclamation, an interjection has no grammatical connection to other words.

۹) **د نداء (غږ) توری**: د نداء توری یوه کلیمه یا عبارت دی، چې احساسات یا فریاد ښیي، ندایه توری کوم ګرامري اړیکه د نورو کلیمو سره نه لري.

**Or** :Interjection is a word which is used to express strong and sudden feelings, or for liking and disliking.

اویا: د نداء توری هغه کلیمه ده چې د قوي او ناڅاپی احساساتو، اویا د خوښې او ناخوښي لپاره استعمالېږي.

Ex: <u>Oh</u>! She is so cute. مثال: <u>آه</u>! هغه څومره ښایسته ده.

# Pronoun ضمیر

pronoun is a word which is used instead of a noun and avoid the repetition of noun.

ضمیر هغه کلیمه ده چې د نوم په ځای استعمالېږي او د نوم له تکرار څخه مخنیوي کوي.

- **Kinds of pronoun:** د ضمیر ډولونه

1. Personal pronouns. شخصي ضمیرونه.
2. Demonstrative pronouns. اشاروي ضمیرونه.
3. Possessive pronouns. ملکي ضمیرونه.
4. Distributive pronouns. توزیعي ضمیرونه.
5. Indefinite pronouns. نا معین ضمیرونه.
6. Interrogative pronouns. پوښتنیز ضمیرونه.
7. Emphasizing pronouns. تاکیدي ضمیرونه.
8. Reflexive pronouns. انعکاسي ضمیرونه.
9. Relative pronouns. موصولي ضمیرونه.

## 1) Personal pronouns شخصي ضميرونه

Personal pronouns are those which are used instead of people Places and things in the sentences.
شخصي ضميرونه هغه دي چې د خلکو(اشخاصو)، مکانونو او شیانو په ځای په جملو کې استعمالیږي.

Or: Personal pronouns are used for showing possession or state.
اويا: شخصي ضميرونه د ملکیت یا وضعیت ښودلو لپاره استعمالیږي.

- **Personal pronouns of two kinds:** شخصي ضميرونه په دوه ډوله

❖ Subjective pronouns. فاعلي ضميرونه.
❖ Objective pronouns. مفعولي ضميرونه.

### ❖ Subjective pronouns: فاعلي ضميرونه

Subjective pronouns are those which are used in the place of subject in the sentence.
فاعلي ضميرونه هغه ضميرونه دي چې د فاعل په ځای په جمله کې استعمالیږي.

| Subjective pronouns | فاعلي ضميرونه |
|---|---|
| I | زه |
| You | ته، تاسي |
| He | هغه (مذکر) |
| She | هغه (مونث) |
| They | هغوی، دوی |
| We | موږ |
| It | هغه (بېجان) |

- **Subjective pronouns are as follow:** فاعلي ضميرونه په لاندي ډول دي:

| **Subjective pronouns فاعلي ضميرونه** | | | |
|---|---|---|---|
| First person لومړي شخص(متكلم) | Singular مفرد | I | I go to school. |
| | Plural جمع | We | We play cheese. |
| Second person دوهم شخص(مخاطب) | Singular مفرد | You | You are a student. |
| | Plural جمع | You | You are students. |
| Third person دريم شخص( غايب) | Singular مفرد | He, She, It | He/She is a teacher.<br>It is a book. |
| | Plural جمع | They | They are my family. |

## ❖ Subject فاعل (مبتدا)

➢ Subject is the doer of an action. فاعل د يو عمل سرته رسوونكي دى.

Ex: Najeeb speaks English. مثال: نجيب په انگليسي خبري كوي.

➢ Subject is a word which is used at the beginning of the sentences.

فاعل هغه كليمه ده چې د جملې په سر كې راوړل كېږي.

Ex: This is my room. مثال: دغه زما اطاق دی.

➢ Subject is a person or thing that we talk about.

فاعل هغه شخص يا شی دی چې مورږ د هغو په باره كې خبري كوو.

Ex: He is a doctor. مثال: هغه يو ډاكتر دی.

## ❖ **Objective pronouns: مفعولي ضميرونه**

Objective pronouns are those which are used in the place of object in the sentence.

مفعولي ضميرونه هغه دي چې د مفعول په ځای په جمله کې استعمالېږي.

**Objective pronouns are as follow:** مفعولي ضميرونه په لاندي ډول دي:

| **Objective pronouns** | مفعولي ضميرونه |
|---|---|
| Me | ماته، زما، له ما |
| You | تاته، تاسي ته |
| Us | موږ ته |
| Them | هغوی ته، دوی ته |
| Him | هغه (مذکر) ته |
| Her | هغې (مونث) ته |
| It | هغه (بېجان) ته |

## ❖ **Object: مفعول**

Object is a person or thing in which the work or action is done to.

مفعول يو شخص يا شی دی چې په هغه باندي کار يا عمل ترسره کېږي.

**Or:** Object is the receiver of an action.

اويا: مفعول د يو عمل اخيستونکd دی.( چې عملورباندي ترسره کېږي).

Ex: I gave <u>him</u> a book. مثال: ما <u>هغه ته</u> يو كتاب وركړ.

- **Kinds of object: د مفعول ډولونه**

1. Direct object. (Accusative Object).
2. Indirect object. (Dative object ).

## 1. Direct object: مستقيم مفعول

Direct object is an object which is affected by the action of a verb directly.

مستقيم مفعول هغه مفعول دی، چې فعل مستقيماً د عمل په واسطه متاثره کېږي.

**Or:** The first receiver of an action is called direct object.

اويا: د يو عمل لمړني اخيستونکي ته مستقيم مفعول وايي.

Ex: I sent a letter to Ahsanullah. مثال: ما يو ليک احسان الله ته ولېږه.

## 2. Indirect object: غير مستقيم مفعول

Indirect object is an object which is affected by the action of a verb indirectly.

غير مستقيم مفعول هغه مفعول دی چې يو فعل د عمل په واسطه په غير مستقيم ډول متاثره کېږي.

**Or:** The second receiver of an action is called indirect object.

اويا: د يو عمل دوهم اخيستونکي ته غير مستقيم مفعول وايي.

Ex: I will buy a car for Naseer. مثال: زه به د نصير لپاره يو موټر واخلم.

car → Direct object; Naseer → indirect object

موټر → مستقيم مفعول; نصير → غيرمستقيم مفعول

**Note**: Direct object is usually a thing and indirect object is usually a person.

نوټ: مستقيم مفعول معمولاً شی وي او غير مستقيم مفعول معمولاً شخص وي.

# To Be verbs د وجود لرلو فعلونه

To Be verbs are used to show state and being the sentences.

د وجود لرلو فعلونه په جملو کي د حالت (وضعيت) او موجوديت ښودلو لپاره استعمالېږي.

- We can use to be verbs before an adjective, a noun, a place Expression, an "ing" form of a verb and third form a verb.
  - موږ د وجود لرلو فعلونه له صفت، اسم، دمکان اصطلاح، دوخت اصطلاح، د فعل "ing" شکل او د فعل له دریم شکل څخه د مخه استعمالولاي شو.

- **To Be verbs consist in:** د وجود لرلو فعلونه عبارت دي له

| **To Be verbs** د وجود لرلو فعلونه | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| Is | are | am | was | were | be | been | being |

| **Present conjugation** | حـال گـردان |
|---|---|
| I am | زه یم |
| You are | ته یې، تاسي یاست |
| They are | هغوی دي، دوی دي |
| We are | موږ یو |
| He is | هغه(مذکر) دی |
| She is | هغه(مونث) ده |
| It is | هغه (بېجان) دی |

Ex: <u>He is</u> a doctor. مثال: هغه یو ډاکټر دی.

Ex: <u>I am</u> a student. مثال: زه یو زده کوونکی یم.

| **Past conjugation** | ماضي(تېر) گـردان |
|---|---|
| I was | زه وم |
| You were | ته وې، تاسي وئ |
| They were | هغوی وو ، دوی وو |
| We were | موږ وو |
| He was | هغه (مذکر) وو |
| She was | هغه (مونث) وه |
| It was | هغه (بېجان) و |

Ex: He was a carpenter. مثال: هغه یو نجار و.

Ex: They were engineers. مثال: هغوی انجنیران وو.

## Note: نوټ

If there is a (to be) verb in a sentence, in the question form these verbs are used at the beginning of the sentence and in the negative form (not) is used after these verbs.

که چېري (to be) فعل په جمله کې موجود وي په سوالي شکل کې دغه فعلونه د جملې په سر کې راځي او په منفي شکل کې له دغه فعلونو وروسته د (not) کلیمه استعمالېږي.

**Ex:** مثال:

- Ahmad Zia is a teacher. (+). - احمدضیا یو ښوونکی دی.(+).
- Is Ahmad Zia a teacher?. (?). - آیا احمد ضیا یو ښوونکی دی؟ (؟).
- Ahmad Zia is not a teacher. (-). - احمدضیا یو ښوونکی نه دی. (-).

## Note: نوټ

( To be) verbs are both ordinary and auxiliary verbs, if they are used alone in the sentences, they are ordinary verbs but when they are followed by other verbs in the sentences, they are auxiliary verbs.

د ( To be) فعلونه هم اصلي فعلونه دي او هم کومکي فعلونه، که چېري په جمله کې یوازې استعمال شي یعنې چې بل فعل موجود نه وي په دغه صورت کې اصلي فعلونه دي مګر کله چې له نورو فعلونو سره یو ځای شي کومکي فعلونه دي.

Ex: Karrim is a Qari. (Ordinary verb). مثال: کریم یو قاري دی. (اصلي فعل).

Ex:Abdullah is playing football.(Auxiliary verb). مثال:عبدالله دفوټبال په لوبه مشغول دی.(کومکي فعل).

نوټ: په حال جاري زمانه کې د (Is, am, are) له (To be) فعلونو څخه، په تېره زمانه کې د (Were, Was) له (To be) فعلونو څخه، په راتلوونکي جاري زمانه کې د (Be) له (To be) فعل څخه او په کاملو زمانو کې د (Been) له (To be) فعل څخه ګټه اخیستل کېږي.

**Examples:** :مثالونه

| | |
|---|---|
| I *am* working now. زه اوس په کار کولو لگیا یم. | حال جاري زمانه |
| He *was* studying the book. هغه د مطالعې په حال کې و. | تېره جاري زمانه |
| I will *be* going to Kabul. زه به کابل ته د تلو په حال کې یم. | راتلوونکي جاري زمانه |
| We have *been* playing volleyball for two hour. موږ د دوو ساعتو لپاره د والیبال د لوبې په حال کې یو. | حال کامله جاري زمانه |

Ex: He is a doctor. مثال: هغه یو ډاکټر دی.

Ex: I am a student. مثال: زه یو زده کوونکي یم.

Ex: He was a carpenter. مثال: هغه یو نجار و.

Ex: They were engeeners. مثال: هغوی انجینران وو.

# To have verbs: د لرلو فعلونه

To have verbs are those which are used to show possession or ownership in the sentences.
د لرلو فعلونه هغه دي چې په جمله کې ملکیت او مالکیت ښودلو لپاره استعمالېږي.

- **To have verbs consist in: د لرلو فعلونه عبارت دي له**

| **To have verbs** د لرلو فعلونه | | |
|---|---|---|
| Have | Has | Had |

| **Present conjugation** | حـــال گـــردان |
|---|---|
| I have | زه لرم |
| You have | ته لري، تاسي لرئ |
| They have | هغوی لري، دوی لري |
| We have | موږ لرو |
| He has | هغه (مذکر) لري |
| She has | هغه(مونث) لري |
| It has | هغه (بېجان) لري |

Ex: I have a car. مثال: زه يو موټر لرم.

Ex: You have three sons. مثال: ته درې زامن لرې.

Ex: He has a bicycle. مثال: هغه يو بايسکل لري.

| Past conjugation | ماضي(تېر) گردان |
|---|---|
| I had | ما درلودل، ما درلود، ما درلودې |
| You had | تاسې درلودل، تاسې درلود، تاسې درلودې |
| They had | هغوی درلودل، هغوی درلود، هغوی درلودې |
| We had | موږ درلودل، موږ درلود، موږ درلودې |
| He had | هغه درلودل، هغه درلود، هغه درلودې |
| She had | هغې درلودل، هغې درلود، هغې درلودې |
| It had | هغه(بېجان) درلودل، هغه درلود، هغه درلودې |

Ex: I had little money. مثال: ما لږ پيسې درلودې.

Ex: He had a car. مثال: هغه يو موټر درلود.

Ex: They had a lot of books. مثال: هغوی ډېر کتابونه درلودل.

**Note: نوټ**

1. **(British system):** use to have verbs at the beginning of the sentence in the question form and add (not) after to have verbs in the negative form.

۱. **(بريتانوی سيستم)**: په سوالي شکل کې د لرلو فعلونه د جملې په سر کې راوړل کېږي او او په منفي شکل کې د لرلو فعلونو څخه وروسته (not) علاوه کېږي.

**Ex:** **مثال:**

| British system | بريتانوي سيستم |
|---|---|
| I have a car. (+) | زه يو موټر لرم. (+) |
| Have I a car? (?) | آيا زه يو موټر لرم؟ (؟) |
| I have not a car. (-) | زه يو موټر نه لرم. (-) |

1. **(American system):** use (to do) verbs with (to have) verbs in the question and negative form.

۲.(امریکایی سیستم): د لرلو فعلونو په سوالي او منفي شکل کې د to do فعلونه له to have سره استعمالیږي.

**Ex:** مثال:

| American system | امریکایي سیستم |
|---|---|
| He <u>has</u> a house. (+) | هغه یو کور لري. (+) |
| <u>Does</u> he have a house? (?) | آیا هغه یو کور لري؟ (؟) |
| He <u>does</u> not have a house. (-) | هغه یو کور نه لري . (-) |

**نوټ**: په سوالي او منفي شکل کې همېشه د (Have) فعل استعمالېږي.

## Note:نوټ

(To have) verbs are both auxiliary and ordinary when they are used alone they are ordinary verbs, but when they are used with other main verbs then they are auxiliary verbs.

د (لرلو فعلونه) هم کومکي دي او اصلي په هغه صورت کې چې یوازی استعمال شي (یعني کوم بل اصلي فعل وجود ونلري) اصلي فعلونه دي، مګر کله چې له نورو اصلي فعلونو سره استعمال شی بیا کومکي فعلونه دي.

Ex: I <u>have</u> a book. مثال: زه یو کتاب لرم.

Ordinary verb اصلي فعل

Ex: I <u>have</u> studied Biology. مثال: ما بیولوژي مطالعه کړې ده.

Auxiliary verb کومکي فعل

## To do verbs د سرته رسولو فعلونه

( To do verbs) are those which are used to show performing of an action in the sentence .

د (سرته رسولو فعلونه) هغه دي چې په جمله کې د یو عمل(کار) سرته رسولو لپاره استعمالېږی.

- **To do verbs consist in:** د سرته رسولو فعلونه عبارت دي له

| **To do verbs** د سرته رسولو فعلونه | | |
|---|---|---|
| Do | Does | Did |

| **Present conjugation** | حال گـــردان |
|---|---|
| I do | زه سرته رسوم |
| You do | تاسي سرته رسوي |
| They do | هغوی (دوی) سرته رسوي |
| We do | موږ سرته رسوو |
| He does | هغه (مذکر) سرته رسوي |
| She does | هغه (مونث) سرته رسوي |
| It does | هغه (بېجان) سرته رسوي |

Ex: I do my homework every day. مثال: زه هره ورځ خپله کورنۍ سرته رسوم.

Ex: He does service every month. مثال: هغه هره میاشت خپله نوکري سرته رسوي.

| **Past conjugation** | ماضي (تېر) گردان |
|---|---|
| I did | ما سرته ورسوله |
| You did | تاسي سرته ورسوله |
| They did | هغوي (دوی) سرته ورسوله |
| We did | موږ سرته ورسوله |
| He did | هغه (مذکر) سرته ورسوله |
| She did | هغه (مونث) سرته ورسوله |
| It did | هغه (بېجان) سرته ورسوله |

Ex: He did his education. مثال: هغه (مذکر) خپلې زده کړې سرته ورسولې.

Ex: I did my homework yesterday. مثال: ما تېره ورځ خپله کورنۍ وظیفه سرته ورسوله.

## Note:نوټ

The sentences which do not have any (to be) verb or other auxiliary verbs, (to do) verbs are used in their question and negative form.

په کومو جملو کې چې د (to be) فعل او بل کوم کومکي فعل موجود نه وي د هغو په سوالي او منفي شکل کې د (to do) له فعلونو څخه استفاده کېږي.

**Ex:** **مثـال:**

| | | | |
|---|---|---|---|
| Ahmad plays volley ball. | (+) | (+) | احمد د واليبال لوبه کوي. |
| Does Ahmad play volley ball? | (?) | (؟) | آيا احمد د واليبال لوبه کوي؟ |
| Ahmad does not play volley ball. | (-) | (-) | احمد د واليبال لوبه نه کوي. |

## Note:نوټ

(To do) verbs are both ordinary and auxiliary verbs; when they are used alone they are ordinary and show performing of the action; but when they are followed by other verbs in the sentence to form a question or negative, are auxiliary verbs and lose their meaning.

د (To do) فعلونه هم کومکي دي او هم اصلي فعلونه؛ په هغه صورت کې چې په جمله کې يوازي استعمال شي اصلي ده او د عمل په سرته رسولو دلالت کوي؛ مګر کله چې په سوالي او منفي شکل کې له نورو فعلونو سره يوځاي شي کومکي فعلونه دي او خپله مانا له لاسه ورکوي.

Ex: I do my homework.(ordinary verb). مثال: زه خپله کورني وظيفه سرته رسوم. (اصلي فعل).

Ex: He dose not play chess (auxiliary verb). مثال:هغه د سطرنج لوبه نه کوی. (کومکي فعل).

# Emphatic "Do"
# "Do"تاکیدي

When the "to do" verbs are placed before the simple form of the verbs emphasize on performance of an action, are called emphatic do.

کله چې د "to do" فعلونه د فعل له ساده شکل څخه دمخه راشي او د عمل په سرته رسولو تاکید وکړي د تاکیدي "Do" په نامه یادېږي.

Ex: Sifat <u>does</u> perform his homework. مثال: صفت خپله کورنۍ وظیفه سرته رسوي.

Ex: Asif <u>does</u> go to work everyday. مثال: آصف هره ورځ کار ته ځي.

Ex: I <u>do</u> study English. مثال: زه انګلیسي مطالعه کوم.

## 2. Demonstrative pronouns: اشاروي ضميرونه

Demonstrative pronouns are those which are used instead of noun and point out some person, place and thing.

اشاروي ضميرونه هغه دي چې د اسم په ځای استعمالېږي او شخص، مکان او شي ته اشاره کوی.

- **Demonstrative pronouns are divided into two parts:**
- اشاروي ضميرونه په دوه برخو وېشل شوي دي:

1. Definite Demonstrative pronouns . معین اشاروي ضمیرونه.
2. Indefinite Demonstrative pronouns. نامعین اشاروي ضمیرونه.

## 1) Definite Demonstrative pronouns . معین اشاروي ضمیرونه

Definite Demonstrative pronouns are those which point out to exact and clear person or thing.

معین اشاروي ضمیرونه هغه چې یو معین او واضح شخص او شي ته اشاره کوي.

**Like لکه :** this (دغـه), that (هغـه), these («جمـع» دغـه), thos( «جمـع»هغـه) the same (عـین شـی), such(داسي، دارنگـه), the former (پخـوانی، مخکنـی), the latter (وروسـتـه)

- **"This دغه"**: "this" is a demonstrative pronoun or adjective which is used for a singular noun that is near the speaker.

"This" یو اشاروي ضمیر اویا صفت دی چې د هغه مفرد اسم لپاره استعمالیږي چې متکلم (خبري کوونکي) ته نږدې وي.

Ex: <u>This</u> is a computer. مثال: <u>دغه</u> یو کمپیوټر دی.

- **"That هغه**: "That" is a demonstrative pronoun or adjective which is used for a singular noun that is far from the speaker.

"That" یو اشاروي ضمیر اویا صفت دی چې د هغه مفرد اسم لپاره استعمالېږی چې له متکلم(خبري کوونکی) څخه لرې وي.

Ex: <u>That</u> is a pen. مثال: <u>هغه</u> یو قلم دی.

- **"These «جمع» دغه":** "These" is a demonstrative pronoun or adjective which is used for plural nouns that is near the speak- er; or " these " is used as the plural form of "this".

"These" یو اشاروي ضمیر اویا صفت دی چې د جمع اسمونو لپاره استعمالېږي چې متکلم (خبري کوونکي) ته نږدې وي، اویا " these " د "this" د جمعي شکل په حیث استعمالېږي.

Ex: <u>These</u> are my friends. مثال: <u>دغه</u> (جمع) زما ملگری دي.

- **"Those«جمع»هغه"**: "Those" is a demonstrative pronoun or adjective which is used for plural nouns that is far from the speaker, or "Those" is used as the plural form of "that".

"Those" يو اشاروي ضمير او يا صفت دی چې د جمعي اسمونو لپاره استعمالېږي چې له متکلم (خبري کوونکي) څخه لري وي، اويا"Those" د "That" د جمعي شکل په استعمالېږي.

Ex: Those are the books. مثال: هغه(جمع) کتابونه دي.

**2) Indefinite Demonstrative pronouns: نامعین اشاروي ضمیرونه**

Indefinite demonstrative pronouns are those which point out to unknown person and things.

نامعین ضمیرونه هغه دي چې نامعین اشخاصو او شیانو ته اشاره کوي.

Ex: We are Muslims. مثال:موږ مسلمانان یو.

Ex: Everybody must have good morality. مثال:هرڅوک باید ښه اخلاق ولري.

# Usages of (It)
# د(It) استعمالات

⇨ (It) is used for inanimate things. د بې جانه شیانو لپاره استعمالېږي. (It)

Ex: It is a cup. مثال: هغه یوه پیاله ده.

⇨ (It) is used for animal when do not consider their gender.
(It) دحیواناتو لپاره استعمالېږي هغه وخت چې دهغو نوعیت په نظر کې ونه نیسو.

Ex: It is a dog. مثال: هغه یو سپی دی.

⇨ (It) can be used for the people in the photo.

(It) کولاي شي د اشخاصو لپاره په تصوير کې استعمال شي.

Ex: Who is this in the picture? مثال: په دغه تصوير کې څوک دی؟

It is Noor Ahmad. هغه نوراحمد دی.

⇨ (It) can be used for small children.

(It) کولاي شي د کوچني ماشومانو لپاره استعمال شي.

Ex: It is a clever baby. مثال: هغه يو ځيرک ماشوم دی.

⇨ (It) also can be used for weather and time.

(It) همدارنګه کولاي شي د هوا (موسم) او وخت لپاره استعمال شي.

Ex: It is winter.(weather). مثال: ژمي ده.(هوا ، موسم).

Ex: It is the four o' clock.(time). مثال: څلور بجې دي.(وخت).

Ex: It is rainy today.(weather). مثال: نن ورځ باراني ده. (هوا).

⇨ (It) is used to give emphasis to a noun or pronoun.

(It) د نوم اويا ضمير باندي تاکيد کولو لپاره استعماليږي.

Ex: It was you who fought with Khalid. مثال: هغه ته وي چې له خالد سره دي جنګ وکړ.

**Note:** (It) and (you) are both subject and object pronoun, when they are used before the verb, they are subject pronouns and when they are used after the verb they are objective pronouns.

**نوټ:** (It) او (you) دواړه هم فاعلي او هم مفعولي ضميرونه دي، کله چې (دغه ضميرونه) له فعل څخه مخکې استعمال شي فاعلي ضميرونه دي او کله چې ( دغه ضميرونه) له فعل څخه وروسته استعمال شي مفعولي ضميرونه دي.

Ex: It works good. (Subject pronoun). مثال: هغه ښه کار کوي.(فاعلي ضمير).

Ex: Hashmat give it yesterday me. (Object pronoun). مثال: حشمت هغه تېره ورځ ماته راکړ(مفعولي ضمير).

Ex: You can speak Pashto. (Subject pronoun).). مثال: ته په پښتو خبري کولاي شي( فاعلي ضمير).

Ex: I give some money to you.( Object pronoun). مثال: ما تاته يوه اندازه پيسي درکړي.(مفعولي ضمير).

# Possessive pronouns
# ملکي ضميرونه

Possessive pronouns are those which are used instead of noun and show possession or ownership.

ملکي ضميرونه هغه دي چې د نوم په ځای استعمالېږي او ملکيت يا مالکيت ښيي.

- **Possessive pronouns consists in:** ملکي ضميرونه عبارت دي له

| **Possessive pronoun** | ملکي ضميرونه |
|---|---|
| Mine | زما |
| Your | د ستا ، د ستاسي |
| His | د هغه(مذکر) |
| Hers | د هغې(مونث) |
| Ours | زمونږ |
| Theirs | د هغوی (د دوی) |

Ex: That house is mine. مثال: هغه کور زما دی.

Ex: This book is yours. مثال: دغه کتاب د ستاسي دی.

# Tense زمانه

Tense is a term used in Grammar to indicate the time of the action or event.

زمانه يو اصطلاح ده په ګرامر کې د عمل وخت اويا واقعي ته اشاره کوي.

**Or**: Tense is the form of the verb which shows the time of occurrence of an action or state.

اويا: زمانه د فعل هغه شکل دی چې د يو عمل د مخامخ کېدو وخت اويا حالت ښکاره کوي.

- **There are sixteen tenses in English language.**

په انگلیسي ژبه کې شپاړس زماني موجودي دي.

**Note:** The word (tense) is a proper noun which indicates to a particular part of Grammar, but (Time) is a common noun which is used in genral.

نوټ: د (tense) کلیمه یو خاص اسم دی او د گرامر یو مخصوص بخش ته اشاره کوي، مگر (Time) یو عام اسم ده چې په ټولو کې استعمالېږي.

- **There are four basic tenses in English language:**

په انگلیسي ژبه کې څلور اساسي زماني موجودي دي:

| | |
|---|---|
| Simple present tense | ساده حال زمانه |
| Simple past tense | ساده تېره زمانه |
| Simple futer tense | ساده راتلوونکې زمانه |
| Simple Future tense in the past | ساده راتلونکې زمانه په تېره (ماضي) کې |

- Tense according to their type are divided into three parts:

زمانې د هغوی د نوعي په نظر په دري برخو وېشل شوي دي:

| | |
|---|---|
| Simple tenses | ساده زماني |
| Prograssive tenses | جاري زماني |
| Perfect tenses | کاملي زماني |

- **In a tence we study three items that are:**

په یوه زمانه کې دري برخې په نظر کې نیول کېږي:

1. Structure ساختمان (فورمول)
2. Usage استعمال
3. Diagram (Chart of displaying a tense) دیاگرام (د زماني د نمایش چارت).

## 2) Irregular verbs بې قاعده فعلونه

Irregular verbs are those which do not have any special rule for forming their past and third forms.

بې قاعده فعلونه هغه دي چې د تېر حالت (دوهم حالت) او دريم حالت لپاره کومه خاصه قاعده ونلري.

Ex: مثال:

| Simple form (ساده شکل(اولي حالت) | Past form (دوهم حالت) تېر حالت | Third form(دريم حالت) |
|---|---|---|
| Rid | Rid | Rid |
| See | Saw | Seen |
| Ring | Rung | Rung |
| Say | Said | Said |
| Write | Wrote | Written |

# Emphasizing pronouns
# تاکيدي ضميرونه

Emphasizing pronouns are those pronoun which are used instead of noun and emphasize on performing of an action.

تاکېدي ضميرونه هغه دي چې د اسم په ځای استعمالېږي او د عمل په سرته رسولو تاکيد کوي.

**Emphasizing pronouns consist is:** تاکيدي ضميرونه عبارت دي له

| Emphasizing pronouns | تاکېدي ضميرونه |
|---|---|
| My self | ما په خپله، زه په خپله |
| Yourself | ته په خپله، تاسي پخپله |
| Himself | هغه(مذکر) په خپله |
| Herself | هغه(مونث) په خپله، هغې پخپله |
| Itself | هغه(بېجان) پخپله |
| Ourselves | موږ په خپله |
| Yourselves | تاسي په خپله |
| Themselves | هغوی په خپله ، دوي په خپله |

Ex: I myself saw him in Kandahar. مثال: ما په خپله هغه په کندهار کې ولید.
Ex: She herself broke the glass. مثال: هغې په خپله گلاس مات کړ.

## Note نوټ:

1. Emphasizing pronouns can be placed after object in the sentence it there is one object.
تاکیدي ضمیرونه کولای شي له مفعول څخه وروسته استعمال شي په هغه صورت کې چې په جمله کې یو مفعول موجود وي.

Ex: Aziz opened the door himself. مثال: عزیز پخپله دروازه خلاصه کړه.

2. Emphasizing pronouns after an intransitive verb.
تاکیدی ضمیرونه له لازمي فعل څخه وروسته استعمالېږي.

Ex: Haseeb told himself me the fact. مثال: حسیب ماته پخپله حقیقت ووایه.
intransitive verb لازمي فعل

3. When the emphasizing pronoun used with preposition (by) it mean by my own self.
هغه وخت چې تاکېدي ضمیرونه د (by) له اضافی توري سره استعمال شي، په تنهایي (بې دنورو له کومک څخه) مانا ورکوي.

Ex: I did every thing by myself.(without any body is help).
مثال: ما هر شی په تنهایي سره سرته ورسول.(بې د کوم شخص له مرستې څخه).

# Reflexive pronoun
# انعکاسي ضمیرونه

Reflexive pronoun are used instead of nouns and show that the subject and object of the sentence is the same , that is to say, the action reflects from subject to object and from object to subject.
انعکاسي ضمیرونه د اسم په ځای استعمالېږي او ښیی چې د جملې فاعل او مفعول یو دی یعنې دا چې عمل له فاعل څخه مفعول ته او له مفعول څخه فاعل ته انعکاس کوي.

**Reflexive pronouns are as follow:** انعکاسي ضمیرونه په لاندي ډول دي

| **Reflexive pronouns** | انعکاسي ضمیرونه |
|---|---|
| My self | ما پخپله، زه پخپله |
| Yourself | ته پخپله، تاسي پخپله |
| Himself | هغه(مذکر) پخپله |
| Herself | هغه(مونث) پخپله، هغې پخپله |
| Itself | هغه(بېجان) پخپله |
| Ourselves | موږ پخپله |
| Yourselves | تاسي پخپله |
| Themselves | هغوی پخپله، دوی پخپله |

Ex: He will depended <u>himself</u>. مثال: هغه به په خپله دفاع وکړي.

Ex: She was pass in the exam <u>herself</u>. مثال: هغه(مونث) پخپله په ازموینه کې بریالۍ شوه.

# Relative pronouns
# ربطي ضمیرونه

The relative pronouns are used instead of nouns and join two sentences.
ربطي ضمیرونه د اسمونو په ځای استعمالېږي او دوه جملې سره نښلوي(ارتباط ورکوي).

- **These pronouns consist in:** دغه ضمیرونه عبارت دي له

| **Relative pronouns** | ربطي ضمیرونه |
|---|---|
| Who | څوک چې |
| Whom | چاته چې، کوم ته چې، چا چې |
| Whose | له چا څخه چې |
| Of which | له څه شی چې |
| What | څه شی چې |
| That | چــې |
| Which | هغه شی چې، کوم شی چې، هغه چې، چې |

Ex: That is the car <u>which</u> I bought yesterday. مثال: هغه موټر دی <u>چې</u> ما تېره ورځ واخیست.

# Note: نوټ

- “**Who**” څوک چې:

“**Who**” is used for people. “**Who**” د اشخاصو(خلگو) لپاره استعمالېږي.

- “**Whom**” : چاته چې، کوم ته چې

“**Whom**” is used instead of object for people.
“**Whom**” د اشخاصو(خلگو) لپاره د مفعول په ځاي استعمالېږي.

- **“Whose”** له چا څخه چې

“**Whose**” is used only for people and sometimes used for things without life.
“Whose” فقط د خلگو(اشخاصو) لپاره استعمالېږي او ځيني وخت د بېجانه شيانو لپاره استعمالېږي.

- **“Which”** کوم چې، کوم شي چې، هغه چې

“Which” is used for things and animals.
“Which” د شيانو اوحيواناتو لپاره استعمالېږي.

- **“ What”** څه شی چې

“ What” is only used for things.
“ What” فقط د شيانو لپاره استعمالېږی.

# Present perfect tense
# حال کامله زمانه

(نږدې ماضي)

| <u>H</u>elping <u>v</u>erbs of P.P tense | د حال کاملې زمانې کومکي فعلونه |
|---|---|
| Have / Has | Have / Has |

**Structure:** ساختمان

| | |
|---|---|
| **Affirmative form**<br>مثبت شکل | Sub + Have /Has + $V_3$ + Comp.<br>Ex: Shabir has gone to Ghazni. مثال: شبير غزني ته تللی دی. |
| **Question form**<br>سواليه شکل | Have /Has + Sub + $V_3$ + Comp?<br>Ex: Has Shabir gone to Ghazni? مثال: آيا شبير غزني ته تللی دی؟ |
| **Negative form**<br>منفي شکل | Sub + Have/Has + Not +$V_3$ + Com .<br>Ex: Shabir has not gone to Ghazni. مثال: شبير غزني ته ندی تللی. |
| **Negative interrogative form**<br>منفي سواليه شکل | Have/Has +Sub + Not + $V_3$ + Comp -?<br>Ex: Has Shabir not gone to Ghazni ? مثال: آيا شبير غزني ته ندی تللی؟<br>Haven't/Hasn't + Sub + $V_3$ + Comp -?<br>Ex: Hasn't Shabir gone to Ghazni ? مثال: آيا شبير غزني ته ندی تللي؟ |

**1) Usage:** Present perfect tense is used for those recent past actions which started and finished at some unknown time in the past.

۱) **استعمال:** حال کامله زمانه د هغه نږدې تېر شوي عملونو لپاره استعمالېږي چې په تېر نامعلوم وخت کې شروع او ختم شوي وي.

**Diagram:**




Ex: I have eaten food. ( time is unknown). مثال: ما ډوډۍ خوړلې ده. (وخت نامعلوم دی).

Ex: The students have traveled to India. (time is unknown).
مثال: محصيلينو هندوستان ته سفر کړی دی. ( وخت نامعلوم دي).

## Note: نوټ

When present perfect tense is used in this way usually followed by adverbs of time, like: already, recently, yet, so for, several times, before , lately etc...

کله چې حال کامله زمانه په دې طریقه استعمال شي معمولاً د وخت له قیدونو سره یوځای کېږي لکه:
مخکې(پخوا)، اخیراً، تراوسه، تر دې ځایه، څو ځله، مخکې، په دې ورستیو کې او داسې نور...

| | | | |
|---|---|---|---|
| already | مخکې(پخوا) | recently | اخیراً، په پای کې، نږدې |
| yet | تر اوسه | so for | تردې ځایه |
| several times | څو ځله | before | مخکې |
| lately | په دې ورستیو کې | | |

Ex: We have <u>already</u> finished the work. مثال: موږ <u>مخکې</u> کار ختم کړي دی.

Ex: I have not visited Paris <u>yet</u>. مثال: ما <u>تراوسه</u> پاریس ندی لیدلي.

Ex: Mohammad has gone to Kandahar <u>several times</u>. مثال: محمد <u>څو ځله</u> کندهار ته تللي دي.

**نوټ: ذکر شوي قیدونه ځیني وخت له** Have, Has **څخه وروسته او ځیني وخت د جملې په اخېر کې راځي.**

**2) Usage:** present perfect tense is used with (Just) to show a recently completed action. (to show immediate past action).

۲) **استعمال**: حال کامله زمانه له (Just) سره د یو نږدې تکمیل شوي عمل ښودلو لپاره استعمالېږي. (نږدې تېرشوي عمل ښیي).

Ex: We have <u>just</u> finished the lesson. مثال: موږ <u>لیږشېبه مخکې</u> درس ختم کړ.

Ex: He has <u>just</u> arrived from Kandahar. مثال: هغه <u>لیږ شېبه مخکې</u> له کندهاره راورسېد.

**3) Usage:** Present perfect tense is used with (since) and (For) to show an action which started in the past and continued up to now.

۳) **استعمال**: حال کامله زمانه له (since) او (For) سره د هغه عمل ښودلو لپاره استعمالیږي چې په ماضي کې شروع شوي وي او تراوسه پورې ادامه لري.

Ex: The students have continued the lessons <u>for</u> ten months.

مثال: زده کوونکو د لسو میاشتو <u>لپاره</u> درسونو ته دوام ورکړي دی.

Ex: Sadat has lived in Kandahar city <u>since</u> 2008 AD.

مثال: سعادت د ۲۰۰۸م کال <u>را پدې خوا</u> د کندهار په ښار کي ژوند کړي دي.

**نوټ**: (For) د وخت موده ښيي او (Since) د وخت اوږدوالي ښيي.

**4) Usage:** Present perfect tense shows an action which happened in the past but the results or effects are still seen in the present time.

۵) **استعمال**: حال کامله زمانه هغه عمل ښيی چې په تېر وخت کې واقع شوی وي او نتایج او اثرات يې په حاضر وخت کې لیدل کېږي.

Ex: I have painted my room. مثال: ما خپل اطاق رنگ کړی دی.(د رنگ اثرات تراوسه لیدل کیږي).

Ex: Ali has cut his finger. مثال: علي خپله گوته پرې کړې ده.(اوس هم وینه جریان لري).

**Note:نوټ**

In present perfect tense the action it is self is very important than of the exact time, but in the simple past tense exact time is important.

په حال کامله زمانه کې پخپله عمل (د عمل سرته رسیدل) له د قیق وخت څخه ډېر مهم دی مگر په ساده تېره زمانه کې د قیق وخت مهم دی.

Ex: I have seen Mustafa today. (at any time today).

مثال: ما نن مصطفي لېدلي دي. ( نن په کوم وخت کې).

Ex: I saw Mustafa at nine o'clock today. (at an exact time).

مثال: ما نن په نهه بجو مصطفي ولید. ( په یو د قیق وخت کې).

**Note:** Present perfect tense and simple past tense are both used with adverbs of time like: ever, never, always, often, several times etc… but both tenses express the same idea in different periods of times.

حال کامله زمانه او تېره ساده زمانه دواړه د وخت له قیدونو سره استعمالېږي لکه: هر (هرکله)، هیڅکله، همېشه، اکثراً، څوځله اوداسي نور... مگر دواړه زماني یوشان مفکوره د وخت په مختلفو دورو کې بیانوي.

**Ex:** **مثال:**

⇨ We lived in Kabul for three years. (past but now).

ما دري کاله په کابل کې ژوند وکړ. (پخوا مگر اوس نه).

⇨ We have lived in Kabul for three years. (past and now).

ما درې کاله په کابل کې ژوند کړی دی. (پخوا او اوس).

# Present perfect continuous tense

**(Present perfect progressive tense)**

# حال کامله جاري زمانه

(حال کامله استمراري زمانه)

| **Helping verbs of P.P.C tense** | د حال کاملي جارې زماني کومکي فعلونه |
|---|---|
| Have been / Has been | Have been / Has been |

**Structure:** ساختمان

| | |
|---|---|
| **Affirmative form** مثبت شکل | Sub + Have /Has + been + $V_1$- ing + Comp.<br>Ex: I have been studing Pashto. مثال: زه د پښتو په مطالعه مشغول وم. |
| **Question form** سواليه شکل | Have /Has + Sub + been + $V_1$- ing + Comp?<br>Ex: Have I been studying Pashto? مثال: آيا زه د پښتو په مطالعه مشغول وم؟ |
| **Negative form** منفي شکل | Sub + Have/Has + Not + been + $V_1$- ing + Comp .<br>Ex: I have not been studying Pashto. مثال: زه د پښتو په مطالعه مشغول نه وم. |
| **Negative interrogative form** منفي سواليه شکل | Have/Has +Sub + Not + been + $V_1$- ing + Comp -?<br>Ex: Have I not been studying Pashto? مثال: آيا زه د پښتو په مطالعه مشغول نه وم؟<br>Haven't/Hasn't + Sub + been + $V_1$- ing + Comp -?<br>Ex: Haven't I been studing Pashto? مثال: آيا زه د پښتو په مطالعه مشغول نه وم؟ |

**1) Usage:** Present perfect continuous tense is used for the actions which begin in the past , continued upto now is still continuing (may or may not go the future.

۲) **استعمال**: حال کامله جاري زمانه د هغو عملونو لپاره استعمالېږي چې په تېروخت کې شروع شوي وي، تراوسه يې ادامه پيدا کړي (په دې حاضر وخت کې) به هم جريان ولري. (ممکن راتلونکي ته ادامه پيدا کړي يا يې پيدا نکړي).

**Note** : Present perfect continuous tense is usually used with (since) and (For) to show the duration of an action.

**نوټ**:حال کامله جاري زمانه معمولاً له (since) او (For) سره استعمالېږي چې د يو عمل موده ښکاره کوي.

Ex: Karrim has been swimming in the pool <u>since</u> four o'clock.

مثال: کريم له څلوروبجو <u>راهيسې</u> په حوض کې په لامبو وهلو مشغول وو.

Ex: Jamila has been washing the clothes <u>for</u> three hours.

مثال: جميله د دوو ساعتو <u>لپاره</u> د کالو په پرېمنځلو مشغوله وه.

**2) Usage:** present perfect continuous tense is also shows the duration of an action which has been going on continually a certain period of time.

۲) **استعمال**: همدارنګه حال کامله جاري زمانه د هغه عمل موده ښيي چې د وخت په يوه معينه دوره کې په جريان کې وي.

**Note**: The adverbs like: all day long, all this morning, all week, all night , etc… are used in this usage of present perfect continuous tense.

نوټ: قيدونه لکه : ټوله ورځ، نن ټول سهار، ټوله اوونۍ، ټوله شپه اوداسي نور... د حال کاملي جاري زمانې په دغه استعمال کې پکار وړل کېږي.

Ex: Abdul Hadi has been playing cricket <u>all this morning</u>.

مثال: عبدالهادي <u>نن ټول سهار</u> د کرکيټ لوبه کوله.

Ex: Basheer has been watching T.V <u>all day long</u>.

مثال: بشير <u>ټوله ورځ</u> تلويزون کوت.

**3) Usage:**Present perfect continuous tense is used to show emphasize on duration of an action which has been continually going on.

۳) استعمال: حال کامله جاري زمانه د هغه عمل د مودي د تاکید لپاره استعمالیږي چې بې ځنډه روان وي.

Ex: Masood has been calling his friend on and on.

مثال: مسعود بې له ځنډه خپل ملګري ته ټیلیفون کاوو.

**4) Usage:** Present perfect continuous tense is used to shows an action which has taken a special period of time in the past.

۴) **استعمال**: حال کامله جاري زمانه د هغه عمل د بیان لپاره استعمالیږي چې د وخت په یوه ټاکلي دوره کې په تېره (زمانه) کې ترسره شوي وي.

Ex: Fatullah has been working in a bank for the last years.

مثال: فتح الله تېر کلونه په بانک کې په کار بوخت وو.

Ex: Asmat has been studing the lesson in Kabul university for last years.

مثال: عصمت تېر کلونه د کابل په پوهنتون کې په درس بوخت وو.

# Verbs فعلونه

Verb is a word which shows an action, state, possession, presence or absence.

فعل هغه کلمه ده چې یو عمل، حالت(وضعیت)، ملکیت، موجودیت او نا موجودیت ښکاره کوي.

| | |
|---|---|
| Ex: Sibghatullah is writing a letter. (action). | مثال: صبغت الله د لیک لیکلو په حال کې دي.(عمل). |
| Ex: Arghandab is a beautiful place .(state). | مثال: ارغنداب یو ښکلي ځاي دی.(حالت). |
| Ex: Sidiqullah has a car.(possession). | مثال: صدیق الله یو موټر لري. (ملکیت). |
| Ex: There is milk in the glass.(presence). | مثال: په ګیلاس کي شېدې دي.(موجودیت). |
| Ex: Karrim <u>is not</u> here. (absence). | مثال: کریم دلته نشته.(نا موجودیت). |

- **Kinds of verb** د فعل ډولونه

⇨ **Verbs divided into two parts:** فعلونه په دوه ډوله وېشل شوي دي

1. Auxiliary (Helping) verbs. کومکي فعلونه.
2. Ordinary (main) verbs. معمولي فعلونه.

# 3. Auxiliary (Helping) verbs. کومکي فعلونه.

Auxiliary verbs are those which are used with main verbs, to support the meaning of the main verbs and to help main verbs to change their forms.

کومکي فعلونه هغه دي چې له اصلي فعلونو سره استعمالېږي، د اصلي فعلونو مانا حمايه(تقويه) کوي اوله اصلي فعلونو سره کومک کوي چې د هغوي بڼو ته تغير ورکړي.

Or: Auxiliary verbs are those which doesn't have particular meaning and is used for making changes in a sentence.

اويا: کومکي فعلونه هغه دي چې مشخصه مانا نه لري او د يوې جملې د تغير راوستلو لپاره استعمالېږي.

- **The auxiliary verbs consist in:** کومکي فعلونه عبارت دي له

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| am | is | was | were | have | has | had | do |
| does | did | can | could | will | would | shall | should |
| may | might | ought to | must | need | used to | | |

- **Auxiliary verbs are divided into three parts:** کومکي فعلونه په دري برخو وېشل شوي

1) Principal auxiliary verbs. اصلي کومکي فعلونه.
2) Modal auxiliary verbs. نمونه يي(وجهي) کومکي فعلونه.
3) Semi modal auxiliary verbs. نيمه نمونه يي(نيمه وجهي) فعلونه.

## 1) Principal auxiliary verbs: اصـلي کومکي فعـلونه

The Principal auxiliary verbs are those which form the main part of auxiliary verbs.

اصلي کومکي فعلونه هغه دي چې د کومکي فعلونو اساسي برخه تشکيلوي.

| Principal auxiliary verbs اصلي کومکي فعـلونه | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| Is | am | are | was | were | been | being |
| have | has | had | do | does | did | |

Ex: Shabeer is a moralist student. مثال: شبير يو اخلاقي زده کوونکی دی.

Ex: Khalid was a pilot. مثال: خالد يو پيلوټ و.

Ex: I am a teacher. مثال: زه يو ښوونکی يم.

➢ **Parts Principal auxiliary verbs** د اصلي کومکي فعـلونو برخې

| 1 | 2 | 3 |
|---|---|---|
| **To be verbs** | **To have verbs** | **To do verbs** |

### ⇨ To Be verbs: د وجود لرلو فعـلونه

To Be verbs are used to show state and being the sentences.

د وجود لرلو فعلونه هغه فعلونه دي چې په جملو کې حالت(وضعيت) او موجوديت بيانوي.

- **To Be verbs consist in:** د وجود لرلو فعـلونه عبارت دي له

| To Be verbs د وجود لرلو فعـلونه | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| Is | Are | Am | Was | Were | Be | Been | Being |

Ex: He is a doctor. مثال: هغه يو ډاکټر دی.

Ex: I am a student. مثال: زه يو زده کوونکی يم.

Ex: He <u>was</u> a carpenter. مثال: هغه یو نجار و.

Ex: They <u>were</u> engeeners. مثال: هغوی انجنیران وو.

## ⇨ To have verbs: د لرلو فعلونه

To have verbs are those which are used to show possession or ownership in the sentences.

د لرلو فعلونه هغه دي چې په جمله کې د ملکیت او مالکیت ښودلو لپاره استعمالېږي.

- **To have verbs consist in: د لرلو فعلونه عبارت دي له**

| To have verbs د لرلو فعلونه | | |
|---|---|---|
| Have | Has | Had |

Ex: You <u>have</u> three sons. مثال: ته درې زامن لرې.

Ex: He <u>has</u> a bicycle. مثال: هغه یو بایسکل لري.

Ex: They <u>had</u> a lot of books. مثال: هغوی ډېر کتابونه درلودل.

## ⇨ To do verbs د سرته رسولو فعلونه

( To do verbs) are those which are used to show performing of an action in the sentence .

د (سرته رسول و فعلونه) هغه دي چې په جمله کې د یو عمل(کار) د سرته رسولو لپاره استعمالېږي.

- **To do verbs consist in: د سرته رسولو فعلونه عبارت دي له**

| To do verbs د سرته رسولو فعلونه | | |
|---|---|---|
| Do | Does | Did |

Ex: I <u>do</u> my homework every day. مثال: زه هره ورځ خپله کورنۍ دنده سرته رسوم.

Ex: He <u>does</u> service every month. مثال: هغه هره میاشت خپله نوکری سرته رسوي.

Ex: I <u>did</u> my homework yesterday. مثال: ما تېره ورځ خپله کورنۍ دنده سرته ورسوله.

# Simple future tense ساده راتلوونکې زمانه

| Helping verbs of simple future tense | د ساده راتلوونکې زمانې کومکي فعلونه |
|---|---|
| Will / Shall | Will / Shall |

## Structure 1: ۱: ساختمان

| | |
|---|---|
| **Affirmative form** مثبت شکل | Sub + Will /Shall +$V_1$ + Comp.<br>Ex: Khalid will learn Arabic. مثال: خالد به عربي زده کړي. |
| **Question form** سواليه شکل | Will /Shall + Sub + $V_1$ + Comp?<br>Ex: Will Khalid learn Arabic? مثال: آيا خالد به عربي زده کړي؟ |
| **Negative form** منفي شکل | Sub + Will /Shall + Not +$V_1$ + Comp .<br>Ex: Khalid will not learn Arabic. مثال: خالد به عربي زده نکړي. |
| **Negative interrogative form** منفي سواليه شکل | Will /Shall +Sub + Not + $V_1$ + Comp -?<br>Ex: Will Khalid not learn Arabic? مثال: آيا خالد به عربي زده نکړي؟<br>Won't/Shan't + Sub +$V_1$ + Comp -?<br>Ex: Won't Khalid learn Arabic? مثال: آيا خالد به عربي زده نکړي؟ |

**Note:** (Will not = Won't) and (Shall not = Shon't)

## Structure 2: ۲: ساختمان

| | |
|---|---|
| **Affirmative form** مثبت شکل | Sub + To be + going to +$V_1$ + Comp.<br>Ex: Khalid is going to learn Arabic. مثال: خالد به عربي زده کړي. |
| **Question form** سواليه شکل | To be + Sub + going to + $V_1$ + Comp?<br>Ex: Is Khalid going to learn Arabic? مثال: آيا خالد به عربي زده کړي؟ |
| **Negative form** منفي شکل | Sub + To be + Not + going to +$V_1$ + Comp .<br>Ex: Khalid is not going to learn Arabic. مثال: خالد به عربي زده نکړي. |
| **Negative interrogative form** منفي سواليه شکل | To be + Not + Sub + going to + $V_1$ + Comp -?<br>Ex: Is not Khalid going to learn Arabic? مثال: آيا خالد به عربي زده نکړي؟ |

نوټ: د (To be going to) فورمول نسبت لومړي فورمول ته ډېر عام دی.

**1) Usage:** Simple future tense is used to show an action which will take place at some exact time in the future.

۱) **استعمال**: ساده راتلوونکې زمانه د هغه کار د بیان لپاره استعمالېږي چې په راتلوونکي کې به رامنځ ته شي.

**Diagram:**




**Note**: Some advrbs like**:** tomorrow , next week , next year , next month etc… are used in this usage of simple future tense.

**نوټ**: ځیني قیدونه لکه: سبا، راتلوونکې اوونۍ، راتلوونکی کال، راتلوونکې میاشت او داسي نور... د ساده راتلوونکي زمانې په دغه استعمال کې پکار وړل کېږي.

Ex: Haneef will go to Ghazni <u>tomorrow</u>. مثال: حنیف به <u>سبا</u> غزني ته ولاړ شي.

Ex: I is going to meet him <u>next week</u>. مثال: زه به <u>راتلوونکي اوونۍ</u> له هغه سره ملاقات وکړم.

**2) Usage:** Simple future tense is used to talk about things which we can not control; it expresses genral facts in the future.

۲) **استعمال**: راتلوونکې ساده زمانه د هغو شیانو په باره کې خبري کوي چې زموږ په اختیار کې نه وی (یعني) هغه حقیقتونه چې په راتلوونکي کې واقع کېږي.

Ex: Ahmad will go to in a week. مثال: احمد به په یوه اونۍ کې ولاړ شي.

Ex:We will know the exam results in April. مثال: موږ ته به د امتحان نتیجې په اپریل کې معلومې شي.

**3) Usage:** Simple future tense is used in the sentences which contain conditional clauses.

۳) **استعمال**: ساده راتلوونکې زمانه په هغو جملو کې استعمالېږي چې شرطي قضیې په کې موجودې وي.

Ex: He will discuss with his father if he gets time.
مثال: که چېري هغه وخت پیدا کړي له خپل پلار سره به خبري وکړي.

Ex: I will go to Kandahar if I buy a car.
مثال: که چېري زه موټر واخلم کندهار ته به ولاړ شم.

**4) Usage:** Simple future tense is also used to express condition or hesitation.
۴) **استعمال**: همدارنګه ساده راتلوونکې زمانه د شرط اویا شک او نه منلو د بیان لپاره استعمالېږي.

Ex: What will I do? at this time next year, I really surprised.
مثال: په رښتیا حیرانېږم چې راتلوونکي کال په دې وخت کې به زه څه کار وکړم؟

# Future continuous tense

**(Future progressive tense)**

## راتلوونکې جاري زمانه

**(راتلوونکې استمراري زمانه)**

| **Helping verbs of F. C tense** | د راتلوونکې جاري زمانې کومکي فعلونه |
|---|---|
| Will be / Shall be | Will be / Shall be |

**Structure 1: ۱ ساختمان**

| | |
|---|---|
| **Affirmative form** مثبت شکل | Sub + Will be /Shall be + $V_1$- ing + Comp.<br>Ex: He will be playing now . مثال: هغه به اوس د لوبې په حال کې وي. |
| **Question form** سوالیه شکل | Will /Shall + Sub + be + $V_1$- ing + Comp?<br>Ex: Will he be playing now? مثال: آیا هغه به اوس د لوبې په حال کې وي؟ |
| **Negative form** منفي شکل | Sub + Will /Shall + Not + be + $V_1$- ing + Comp .<br>Ex: He will not be playing now. مثال: هغه به اوس د لوبې په حال کې نه وي. |
| **Negative interrogative Form** منفي سوالیه شکل | Will /Shall +Sub + Not + be + $V_1$- ing + Comp -?<br>Ex: Will he not be playing now? مثال: آیا هغه به اوس د لوبې په حال کې نه وي؟<br>Won't/Shon't + Sub + be + $V_1$- ing + Comp -?<br>Ex: Won't he be playing now? مثال: آیا هغه به اوس د لوبې په حال کې نه وي؟ |

**Structure 2: ۲ ساختمان**

| | |
|---|---|
| **Affirmative form** مثبت شکل | Sub + To be + going to + be + $V_1$- ing + Comp.<br>Ex: He is going to be playing now. مثال: هغه به اوس د لوبي په حال کي وی. |
| **Question form** سواليه شکل | To be + Sub + going to + be + $V_1$- ing + Comp?<br>Ex: Is he going to be playing now? مثال: آيا هغه به اوس د لوبي په حال کي وی؟ |
| **Negative form** منفي شکل | Sub + To be + Not + going to + be + $V_1$- ing + Comp .<br>Ex: He is not going to be playing now. مثال: هغه به اوس د لوبي په حال کي نه وی. |
| **Negative interrogative form** منفي سواليه شکل | To be + Not + Sub + going to + be + $V_1$- ing + Comp -?<br>Ex: Is not I going to be playing now? مثال: آيا هغه به اوس د لوبي په حال کي نه وی؟ |

**1) Usage :** Future continuous tense is used to expresses the duration of an action which will be in progress at some exact time in the future.

۱) **استعمال**: راتلوونکې جاري زمانه د هغه عمل د بيان لپاره استعماليږي چې په راتلوونکي کې به په يو ټاکلي وخت کې د جريان په حالت کې وی.

Ex: Shabeer will be cleaning the room tomorrow.

مثال: شبير به سبا د کوټې په پاکولو مشغول وي.

Ex: Bilal will be fixing the picture on the wall.

مثال: بلال به په دېوال باندې د تصوير په ټکوهلو مشغول وي.

**2) Usage:** Future continuous tense is also used to show the duration of two actions that will be simultaneously going on.

۲) **استعمال**: همدارنګه راتلوونکې جاري زمانه د دوو عملونو د مودې د ښودلو لپاره استعماليږي چې همزمان(په يو وخت کې) د جريان په حالت کې وی.

Ex: We will be doing our homework, while they will be working in the garden.

مثال: کله چې به هغوی په باغ کې په کار بوخت وی، زه به د کورنی کار په ترسره کولو بوخت يم.

**3) Usage:** future continuous tense is used to show an action which will be continuing in an exact course of time in the future.

۲) **استعمال**: راتلوونکې جاري زمانه د هغه عمل د بيان لپاره استعمالېږي چې د وخت په يوه ځانګړې موده کې به په راتلوونکې کې د جريان په حالت کې وي.

Ex: He will be getting ready for the exam all next week.

مثال: هغه به ټوله راتلوونکې اونۍ د امتحان لپاره ځان چمتو کوي.

Ex: Our classmates will be exercising for the races all next month.

مثال: زموږ ټولګيوال به ټوله راتلوونکې مياشت د مسابقې لپاره ځان چمتو کوي.

Ex: Amin will be typing the letters all afternoon .

مثال: امين به ټول ماسپښين په خط ليکلو بوخت وي.

**4) Usage:** The future continuous tense can be also used in the conditional sentences.

۴) **استعمال**: همدارنګه راتلوونکې جاري زمانه کولای شي په شرطيه جملو کې استعمال شي.

Ex: I am going to be meeting him at 5:00 PM if I do not face any problem.

مثال: که له مشکل سره مخامخ نشم د مازديګر په ۵ بجې به له هغه سره په مجلس مشغول يم.

## 2. Modal auxiliary verbs نمونه يي (وجهي) کومکي فعلونه

The modal auxiliary verbs are those which don't have any final (s) or (es) at the third singular person, they don't have any past participle and infinitive form therefore can't be used in the continuous form.

نمونه يي کومکي فعلونه هغه دی چې د دريم شخص لپاره (s) اويا (es) نه غواړي دغه فعلونه دريم حالت نه لري او همدارنګه د مصدر شکل هم نه لري له دې کبله يې په جارې شکل نشو استعمالولای.

- **The modal auxiliary verbs are consist in:** نمونه يي کومکي فعلونه عبارت دي له

| **The modal auxiliary verbs** نمونه يي کومکي فعلونه | | | | |
|---|---|---|---|---|
| Can | Could | Shall | Should | Will |
| Would | May | Might | Must | Ought to |

## ➢ Can: کول، توانېدل

**"Can"** is modal auxiliary verb which shows ability.

**"Can"** يو نمونه يي کومکي فعل دي چې توانايي ښکاره کوي.

- Formula of **"Can"**: د **"Can"** فورمول:

| | |
|---|---|
| Subject + Can + $V_1$ + Object / Complement. | ساده حالت (+). |
| Najeeb <u>can</u> speak Pashto. | نجيب په پښتو خبري کولای شي. |
| Can + Subject + $V_1$ + Object / Complement? | سواليه حالت(?) |
| <u>Can</u> Najeeb speak Pashto? | آيا نجيب په پښتو خبري کولای شي؟ |
| Subject + Can + not / Can't +$V_1$ + Object / Complement. | منفي حالت(-) |
| Najeeb <u>can not</u> / <u>can't</u> speak Pashto. | نجيب په پښتو خبري نشي کولای. |
| Can + Subject + not + $V_1$ + Object /Complement -? | منفي سواليه شکل(-/?) |
| <u>Can</u> Najeeb not speak Pashto-? | آيا نجيب په پښتو خبري نشي کولای -؟ |
| Can't + Subject + $V_1$ + Object/ Complement -? | منفي سواليه حالت(-/?) |
| <u>Can't</u> Najeeb speak Pashto -? | آيا نجيب په پښتو خبري نشي کولاي -؟ |

- **Complement (تکميل کوونکی)**

Complement is a word or a group of words which completes the meaning of a sentences after verb.

تکميل کوونکی يوه کليمه اويا گروپ د کليمو څخه عبارت دی چې د فعل څخه وروسته د جملې مانا تکميلوي.

Ex: I saw <u>Aziz</u> . مثال: ما <u>عزيز</u> وليد.

Ex: Salim seems <u>happy</u>. مثال: سليم <u>خوشحاله</u> معلومېږي.

**Note**: Complement can be a noun, adjective, pronoun or a number.

نوټ: تکمیل کوونکی کېداي شي یو اسم، صفت، ضمیر اویا یو عدد وي.

## Note :نوټ

- “ (Be) able to” کول، توانايي لرل، توانېدل

**“ (Be) able to”** is possible to use instead of (Can), but (Can) is more usual.

**“ (Be) able to”** د (Can) ممکن په ځاي استعمال شي، مګر(Can) ډېر معمول دي.

Ex: I am <u>able to</u> speak Arabic. مثال: زه د عربي په خبري کولو قادر یم.

- “ Can” has only two forms, “Can” is in the (present) and “Could” is used in the (Past) So sometimes it is necessary to use **(be) able to.**

“ Can” یوازي دوه حالته لري “ Can” په ساده حالت کې استعمالېږي او “Could” یې په ماضي کې استعمالېږي نو په دې خاطر ځیني وخت ضرورت دي چې (Be) able to استعمال شي.

Ex: I will <u>be able to</u> win this match easily. مثال: زه به توانايي ولرم چې دغه مسابقه په اسانۍ سره وګټم.

Ex: I was <u>able to</u> swim. مثال: ما کولای شوای "چې" لامبو و وهم.

## ➢ “ Could”: کول، توانېدل

“ Could” is a modal auxiliary verb which is used in the past form of can but it is used in the present, past and future tenses.

“ Could” یو نمونه یي کومکي فعل دی چې د (Can) په ماضي شکل استعمالېږي.

(تېره توانايي ښیي) مګر په حال، ماضي او راتلونکي زمانو کې (هم) استعمالېږي.

- **Formula of "Could"** **د "Could" فورمول**

| | |
|---|---|
| Subject + Could + $V_1$ + Object / Complement. (+) | ساده حالت |
| He <u>could</u> teach English. | هغه کولای شوای انگلیسي تدریس کړي. |
| Could + Subject + $V_1$ + Object / Complement? (?) | سوالیه حالت |
| <u>Could</u> he teach English? | آیا هغه کولای شوای انگلیسي تدریس کړي؟ |
| Subject + Could + not +$V_1$ + Object / Complement. (-) | منفي حالت |
| He <u>could</u> not teach English. | هغه نشوای کولای انگلیسي تدریس کړي. |
| Could + Subject + not + $V_1$+ Object/ Complement -? (?/-) | منفي سوالیه حالت |
| <u>Could</u> he not teach English -? | هغه نشوای کولای انگلیسي تدریس کړي -؟ |
| Couldn't + Subject +$V_1$+ Object/ Complement -? (?/-) | منفي سوالیه حالت |
| <u>Couldn't</u> he teach English -/? | آیا هغه نشواي کولای انگلیسي تدریس کړي-/؟ |

## Note:نوټ

The verb "could" is may sometimes show a present probability.

د"could" فعل ځیني وخت کولاي شي یو احتمالي عمل په حال زمانه کې بیان کړي.

Ex: If I participate in the class every day, I could succeed in the exam.

مثال: که چېري په ټولګی کې هره ورځ شرکت وکړم، احتمالاً په امتحان کې کامیابېږم .

## ➢ "May": احتمالاً، شاید، امکان لرل

"May" shows a present probability. "May" یو حاضر احتمال ښکاره کوی.

Ex: If you open windo , you may catch cold.

مثال: که چېري تاسي کړکۍ خلاصه کړئ، <u>امکان لري</u> یخني مو وشي.

- When "May" is placed at the beginning of the sentence show permission and request.

کله چې "May" د جملې په سر کې راشي نو اجازه او غوښتنه بیانوي.

Ex: May I come in? (permission) مثال: آیا داخل ته درتلاي شم؟ (اجازه).

Ex: May Allah he succeed! (request). مثال: خداي ج دي هغه کامیاب کړي! (غوښتنه).

Ex: May Allah save his evil eyes! (request). مثال: خداي ج دي هغه له بدو سترګو وساتي! (غوښتنه).

Ex: May I have a glass of water. (request). مثال: امکان لري یو ګیلاس اوبه راکړي. (غوښتنه).

# Note: نوټ

In some sentences "God" comes with "May" and in some doesn't come.

په ځینو جملو کې "God" له "May" سره راځي او په ځینو کې نه راځي.

**Formula of "may"** د "may" فورمول

| | | |
|---|---|---|
| Subject + may + $V_1$ + Object / Complement.<br>He may go to home. | (+) | ساده حالت<br>هغه امکان لري کورته تللی وي. |
| May + Subject + $V_1$ + Object/Complement?<br>May he go to home? | (?) | سوالیه حالت<br>آیا امکان لري هغه کورته تللی وي؟ |
| Subject + may + not +$V_1$ + Object/Complement.<br>He may not go to home. | (-) | منفي حالت<br>هغه امکان لري کورته نه وي تللی. |
| May + Subject + not + $V_1$ + Object/Complement -? <br>May he not go to home -? | (?/-) | منفي سوالیه حالت<br>آیا هغه امکان لري کورته نه وي تللی -؟ |
| Mayn't + Subject + $V_1$ + Object/Complement -?<br>Mayn't he go to home -? | (?/-) | منفي سوالیه حالت<br>آیا هغه امکان لري کورته نه وي تللي-؟ |

## ➢ **"Might":احتمالاً، شاید، امکان لرل**

"Might" is used in the past form of (may) and in the indirect speech.

"Might" د (may) په تېر(ماضي) شکل کې او په غیر مستقیم کلام کې استعمالېږي.

Ex: It <u>might</u> rain in Kabul. مثال: په کابل کې شاید باران شوی وي.

Ex: He <u>might</u> have gone. مثال: هغه شاید تللی وی.

- **Formula of "might"** د **"might"** فورمول

| | | |
|---|---|---|
| Subject + might + $V_1$ + Object / Complement.<br>Ali <u>might</u> go to Ghazni. | (+) | ساده حالت<br>علي شاید غزني ته تللی وی. |
| Might + Subject + $V_1$ + Object / Complement?<br><u>Might</u> Ali go to Ghazni? | (?) | سوالیه حالت<br>آیا علي شاید غزني ته تللی وی؟ |
| Subject + might + not +$V_1$ + Object / Complement.<br>Ali <u>might</u> not go to Ghazni. | (-) | منفي حالت<br>علي شاید غزني ته نه وی تللی. |
| Might + Subject + not + $V_1$ + Object / Complement -?<br><u>Might</u> Ali not go to Ghazni -? | (?/-) | منفي سوالیه حالت<br>آیا علي شاید غزني ته نه وی تللی -؟ |
| Mightn't + Subject + $V_1$ + Object/ Complement -?<br><u>Mightn't</u> Ali go to Ghazni -? | (?/-) | منفي سوالیه حالت<br>آیا علي شاید غزني ته نه وی تللی -؟ |

## ➢ **"Must": باید (حتماً)**

"Must" is a modal auxiliary verb which shows strongest command or obligation.

"Must" یو نمونه یې کومکي فعل دي چې ډېر قوي امر اویا مجبوریت ښکاره کوي.

Ex: We <u>must</u> help the poor. مثال: موږ <u>باید</u> له فقیرانو سره مرسته وکړو.

Ex: Every Muslim <u>must</u> pray five time in a day. مثال: هر مسلمان <u>باید</u> په ورځ کې پنځه وخته لمونځ وکړي.

- "Must" is also used to express a necessity.

"Must" د ضرورت بیانولو لپاره هم استعمالېږي.

Ex: He <u>must</u> work hard for promotion. مثال: هغه <u>باید</u> د پرمختګ لپاره زیار وکړي.

- "Must" is also used to express a fixed or strong determination.
"Must" د ټاکل شوي قوي تصمیم یا ارادې د څرګندولو لپاره هم استعمالیږي.

Ex: We <u>must</u> finish the work to day. مثال: موږ باید نن ورځ کار ختم کړو.

- "Must" is also used to express a probability.
"Must" د قوي احتمال لپاره هم استعمالیږي.

Ex: I think, she <u>must</u> be sick. مثال: زه فکر کوم هغه به (حتماً) ناروغ وي.

- **Formula of "must"** **د "must" فورمول**

| | | |
|---|---|---|
| Subject + must + $V_1$ + Object / Complement.<br>He <u>must</u> go to school. | (+) | ساده حالت<br>هغه باید ښوونځي ته ولاړ شي. |
| Must + Subject + $V_1$ + Object / Complement?<br><u>Must</u> he go to school? | (?) | سواليه حالت<br>آیا هغه باید ښوونځي ته ولاړ شي؟ |
| Subject + must + not +$V_1$ + Object/ Complement.<br>He <u>must</u> not go to school. | (-) | منفي حالت<br>هغه باید ښوونځي ته ولاړ نه شي. |
| Must+Subject+not+$V_1$+Object /Complement -?<br><u>Must</u> he not go to school -? | (?/-) | منفي سواليه حالت<br>آیا هغه باید ښوونځي ته ولاړ نشي -؟ |
| Mustn't + Subject + $V_1$ + Object/ Complement -?<br><u>Mustn't</u> he go to school -? | (?/-) | منفي سواليه حالت<br>آیا هغه باید ښوونځي ته ولاړ نشي - ؟ |

**Note**: "Mustn't" is the contracted from of "Must not" the first "t" is silent, which is pronounced "Mussant".

نوټ: "Mustn't" د "Must not" اختصاري شکل دی، لومړنی "t" بې غږه ده، چې "Mussant" تلفظ کیږی.

نوټ۲: په ماضي کې د "Must" په ځای له "Had to" څخه کار اخیستل کیږي.

Ex: He <u>had to</u> go to the bazaar. مثال: هغه باید بازار ته تللی وای.

نوټ ۳: "Must" اکثره هغه وخت استعمالیږي چې اجبار یا هدایت زموږ (متکلم) له خوا وي مګر "Has to" هغه وخت استعمالیږي چې اجبار یا هدایت د خارجي عواملو له طرفه وي.

## ➢ "**<u>Have to</u>**", "**<u>Has to</u>**": باید

You
We } <u>Have to</u>
They

Ex: We <u>have to</u> study for exam. مثال: موږ <u>باید</u> د امتحان لپاره مطالعه وکړو.

He
She } <u>Has to</u>
It

Ex: He <u>has to</u> work in this company. مثال: هغه <u>باید</u> په دغه کمپنۍ کې کار وکړي.

## ➢ <u>"Shall" / "Will": به</u>

"Shall" and "will" are modal auxiliary verbs which are used in the future tenses.

"Shall" او "will" نمونه يي کومکي فعلونه دي چې په راتلونکو زمانو کې استعمالیږي.

Ex: I <u>shall</u> call him tomorrow. مثال: زه <u>به</u> سبا هغه ته زنګ ووهم.

Ex: He <u>will</u> play cricket. مثال: هغه <u>به</u> د کرکيټ لوبه وکړي.

- "Will" and "Shall" are used in the future tenses as helping verbs. "will" is usually used with the pronouns ( he, she, they, it, you, and singular or plural names). "shall" is usually used with "I" and "we".

"Will" او "Shall" د کومکي فعلونو په حیث په راتلونکو زمانو کې استعمالیږي.
"Will" معمولاً د (he, she, they, it, you) فعلونو او مفرد یا جمع اسمونو سره استعمالیږي. "shall" معمولاً له "I" او "we" سره استعمالیږي.

Ex: She will help his. مثال: هغه (مونث) به له هغه سره مرسته وکړي.
Ex: They will come tomorrow. مثال: هغوی به سبا ورځ راشي.
Ex: I shall play tomorrow. مثال: زه به سبا لوبه وکړم.

**Note** : "Will" is more common but in interrogative sentences with "I" and "we" "Shall" is used.

نـوټ: "Will" ډېر معمول دی مگر په سوالیه جملو کې له "I" او "we" سره "Shall" استعمالېږي.

Ex: Will / Shall we help them today? مثال: آیا موږ به نن له دوی سره کومک وکړو؟
Ex: Shall we meet them? مثال: آیا موږ به نن له دوب سره ملاقات وکړو؟

## ➢ " Should": به، باید، ښايي

1. " Should" is used in the past form of "Shall".

" Should" د "Shall" په ماضي شکل استعمالېږي.

Ex: I should clean my room. مثال: زه باید خپله کوټه پاکه کړم.
Ex: Should he swim in this river? مثال: آیا هغه باید په نهر کې لامبو و وهي؟

2. " Should" is also used to express an obligation or duty.

" Should" د مجبوریت یا مسؤلیت څرگندولو لپاره هم استعمالېږي.

Ex: He should studied his lesson. مثال: هغه باید خپل درسونه مطالعه کړي.

3. " Should" is also used to express a probability.

" Should" د یو احتمال بیانولو لپاره هم استعمالېږي.

Ex: He should be in the class room now مثال: هغه به اوس په ټولگي کې وي.

## ➢ " Would": به ، باید ، بنـایي

1. " Would" is used in the past form of "will" it can be used in the present, past and future.
" Would" د "will" په ماضي شکل استعمالېږي هغه کېدای شي په حال، ماضی ، او راتلونکي کې استعمال شي.

**Formula of "Would".** **د "Would" فـورمول**

| | |
|---|---|
| Subject + would + $V_1$ + Object/Complement. (+) | ساده حالت |
| You would learn English. | تاسي به انګلیسي زده کوله. |
| Would + Subject + $V_1$ + Object/ Complement? (?) | سواليه حالت |
| Would You learn English? | آیا تاسي به انګلیسي زده کوله ؟ |
| Subject + would + not +$V_1$ + Object /Complement. (-) | منفي حالت |
| You would not learn English. | تاسي به انګلیسي نه زده کوله. |
| Would + Subject + not + $V_1$ + Object/Complement -? (?/-) | منفی سواليه حالت |
| Would you not learn English - ? | آیا تاسي به انګلیسي نه زده کوله - ؟ |
| Wouldn't + Subject + $V_1$ + Object/Complement -? (?/-) | منفي سواليه حالت |
| Wouldn't you learn English-? | آیا تاسي به انګلیسي نه زده کوله -؟ |

Ex: I would pass the exam, If I studied hard. مثال: زه کامیابېدلم که چېرې ما پراخه مطالعه کړي واي.

➢ "Would" is usually combined with words (please) and (mind) to express a polite request.

"Would" معمولاً د (please) او (mind) له کلیمو سره ترکیب کېږي مؤدبانه غوښتنه بیانوي.

Ex: Would you please close the door ? مثال: آیا مهرباني به وکړئ دروازه بنده کړئ؟
Ex: Would you mind telling me the fact? مثال: آیا مهرباني به وکړئ چې حقیقت راته و وایاست؟
Ex: Would you mind ringing me? مثال: آیا مهرباني به وکړئ ماته یو زنګ و وهئ؟

**Note :نوټ**

(Please) is used with simple form of the verb but (mind) is used with (ing) form of the verb.

(Please) د فعل له ساده شکل سره استعمالېږي مګر(mind) د فعل له (ing) شکل سره شکل سره استعمالېږي.

- [Would + like] is used to express a wish.
  [Would + like] د هیلې (ارزو) د څرګندولو لپاره استعمالېږي.

Ex: I would like to see you after. مثال: زه غواړم وروسته له تا سره و وینم.

- [Wish + like] is used to express wish desire.
  [Wish + like] د ارمان (افسوس) د څرګندولو لپاره استعمالېږي.

Ex: I wish! I would pass the exam. مثال: کاشکي! زه په امتحان کې کامیاب شوی وای.

Ex: He wishes ! He would visit Kandahar. مثال: کاشکي! هغه دوباره کندهار ته تللی وای.

## ➢ "Ought to": باید

"Ought to" indicates a command or instruction.
"Ought to" امــر یا هــدایــت څــرګــندوي.

Ex: I Ought to tell him the fact. مثال: زه باید هغه ته حقیقت ووایم.

Formula of **"Ought to"** د **"Ought to"** فورمول

| | | |
|---|---|---|
| Subject + Ought to + $V_1$ + Object / Complement. | (+) | ساده حالت |
| You ought to learn English! | | تاسي باید انګلیسي زده کړئ! |
| Ought + Subject + to + $V_1$ + Object / Complement? | (?) | سواليه حالت |
| Ought You to learn English? | | آیا تاسي باید انګلیسي زده کړئ؟ |
| Subject + Ought + not + to + $V_1$ + Object/ Complement. | (-) | منفي حالت |
| You ought not to learn English! | | تاسي باید انګلیسي زده نه کړئ! |
| Ought + Subject + not + to + $V_1$ + Object/Complement -? | (?/-) | منفي سواليه حالت |
| Ought you not to learn English ? | | آیا ته باید انګلیسي زده نه کړئ ؟ |
| Oughtn't + Subject + $V_1$ + Object/ Complement -? | (?/-) | منفی سواليه حالت |
| Oughtn't you learn English? | | آیا ته باید انګلیسي زده نه کړئ؟ |

- "Ought to" express a weak necessity.

"Ought to" یو ضعیف ضرورت څرګندوي.

Ex: You ought to buy a car! مثال: ته باید یو موټر واخلي!

Ex: Students ought to have a pen and notebook. مثال: زده کوونکي باید قلم او کتابچه ولري.

Ex: He ought not to neglect in his duties. مثال: هغه باید په خپلو وظایفو کې غفلت ونکړي.

**Note:** "Should" is more commonly than "Ought to".

"Should" له "Ought to" **څخه** ډېر معمول دی. ("Should" ډېر استعمالېږي).

# Semi modal auxiliary verbs

# نیمه نمونه یي کومکي فعلونه

There are three semi modal auxiliary verbs in English language which consist in: Need, Dare and Used to.

په انګلیسي ژبه کې درې نیمه نمونه یي کومکي فعلونه دي چې عبارت دي له: Dare, Need او Used to **څخه**.

| Semi modal auxiliary verbs نیمه نمونه يي کومکي فعلونه | | |
|---|---|---|
| Need | Dare | Used to |

## ➢ "Need": ضرورت لرل، احتياج لرل، احتياج

"Need" is used to show a necessity it sometimes works as a ordi - nary verb, sometimes as a modal auxiliary verb and sometimes a noun.

"Need" د ضرورت او حاجت د ښکاره کولو لپاره استعمالېږي هغه ځيني وخت د اصلي فعل په حيث، ځيني وخت د نمونه يي کومکي فعل په حيث او ځيني وخت د يو اسم په حيث کار کوي.

Ex: He <u>need</u> not go there. (auxiliary). مثال: ضرورت نشته چې هغه هلته ولاړ شي.(کومکي).

Ex: I <u>need</u> a pen. (ordinary). مثال: زه يوه قلم ته ضرورت لرم.(اصلي).

Ex: He is <u>need</u> of money. (noun). مثال: هغه د پيسو محتاج دی. (اسم).

نوټ: کله چې د "Need" فعل په جمله کې يوازي او يا له مصدر سره يوځاي استعمال شي اصلي فعل دي او کله چې په سواليه يا منفي شکل استعمال شي بيا کومکي فعل دی او که ځيني وخت په مثبته جمله کې له بل فعل سره راشي نو د اسم په حيث کار کوي.

Ex: I <u>need</u> a pen to write.(ordinary). مثال: زه د ليکلو لپاره يو قلم ته ضرورت لرم.(اصلي).

Ex: <u>Need</u> he come? (auxiliary). مثال: آيا د هغه راتګ ضروری دی؟ (کومکي).

Ex: She is <u>need</u> of dress.(noun). مثال: هغه د لباس محتاجه ده.(اسم).

## ➢ "Dare": جرئت لرل

"Dare" is used to show courage and bravery.

"Dare" د جرئت او زړورتيا د ښکاره ولو لپاره استعمالېږي.

- "Dare" is also used as ordinary and auxiliary verbs.

"Dare" د اصلي او کومکي فعلونو په حيث هم استعمالېږي.

Ex: I dare till him the matter. (auxiliary). مثال: زه په جرئت سره هغه ته موضوع وایم. (کومکي).

Ex: He dare not / daren't come in front of us. (auxiliary).
مثال: هغه جرئت نه لري (چې) زموږ مخته راشي. (کومکي).

Ex: She did not dare to talk me. (ordinary).
مثال: هغې جرئت ونه کړ (چې) له ما سره خبري وکړي. (اصلي).

## ➢ " Used to": سابق، پخوا

a) When (used to) is followed by the simple form of the verb , means (before) and (ago).
کله چې (used to) د فعل له ساده شکل سره استعمال شي د (مخکي ) او (پخوا ) مانا ورکوی.

Ex: Amran used to work in a bank. مثال: عمران پخوا په یوه بانک کې کار کاوو.

b) When (used to) used with to be verb followed by the (ing) form means habit.
کله چې (used to) د (to be) فعل سره استعمال شي او وروسته له هغه د (ing) شکل علاوه شي عادت مانا ورکوي.

Ex: I am used to living in Kabul. مثال: زه په کابل کې له ژوند کولو سره عادت یم.

Ex: He was used to playing cricket. مثال: هغه د کرکیټ له لوبې سره عادت وو.

c) { Get + used to} is also used to show habit.
{ Get + used to} همدارنگه د عادت د ځرگندولو لپاره استعمالیږي.

Ex: You will soon get used to living in the city.
مثال: ته به ژر په ښار کې د ژوند کولو سره عادت شي.

# Noun اســم

Noun is a word which is used as the name some person, place, place or animal or a thing.

اسم هغه کلیمه ده چې د شخص، مکان، حیوان اویا د یو شي د نومولو لپاره استعمالېږي.

Ex: Obaid, Logar, Cow, Glass etc… مثال: عبید ، لوګر، غـوا ، ګیلاس اونور...

- **Nouns according to physical existence touchable and seen are divided into two parts:**

- اسمونه د فزیکي و جود د لمس د قابلیت او د لېدو په مطابق په دوو برخو وېشل شوي دي:

**1) Concrete Nouns.** د ذات اسـمونه

**2) Abstract Nouns.** د مانا اسـمونه

## 1) Concrete Nouns: د ذات اسمونه

Concrete noun is a noun which has foreign or physical existence and we can usually touch it.

د ذات اسم هغه اسم دي چې خارجي یا فزیکي وجود ولري او موږ هغه معمولاً لمس کولای شو.

Ex: Stone, earth, house, door etc... مثال: ډبره، ځمکه، کور، دروازه اوداسي نور...

- **Concrete nouns are divided into five parts:**

د ذات اسمونه په پنځو برخو وېشل شوي دي:

1. Proper noun. خاص اسم
2. Common noun. عام اسم
3. Collective noun. د جمع اسم
4. Material noun. د جنس اسم
5. Compound noun. مرکب اسم

## 1. Proper Noun خاص اسم

Proper noun is the name of some proper person or place.
خاص اسم د خاص شخص یا ځاي نوم دی.(په خاص شخص یا خاص ځای باندي دلالت کوي).

Ex: Afghanistan, Kandahar, Ghazi M. Jan Khan, Mirwis Nika etc...
مثال: افغانستان، کندهار، غازی محمد جان خان، میرویس نېکه اوداسي نور...

## 2. Common Noun عـام اسـم

Common noun is a name given in common to every person or thing in the same class or kind.
عـام اسم هغه اسم دی چي هـر شـخص یا شي ته پخپله نوع یا ټولگي کي عام وي. ( چي په همجنس شخص یا شي باندي دلالت کوي).

Ex: Child, school, class, book etc... مثال: ماشوم، ښوونځی، ټولگی، کتاب اونور...

## 3. Collective Noun د جمع اسـم

Collective noun is the name of a collection of persons, things or animals.
د جمع اسم د اشخاصو، شیانو یا حیواناتو د ډلي په نوم(دلالت) کوي.

Ex: Family, tribe, nation etc... مثال: کورنۍ، قبیله، ملت او داسی نور...

## 4. Material Noun د جنس اسـم

Material noun is a noun which shows what substance is a noun made of.
د جنس اسم هغه اسم دی چي دا ښکاره کوي چي یو اسـم له څه شي څخه جوړ شوی دي.

Ex: Wood, Milke, Gold, water etc... مثال: لرگی، شیدي، سره زر، اوبه اونور...

## Note: نوټ

By adding article (the) before material nouns, they are turned to common nouns.

د جنس د اسم څخه د مخه د (the) د تعریف توری په زیاتولو سره هغوی په عام اسمونو بدلیږي.

Ex: We are need of <u>food</u>. ( material noun).

مثال: موږ د <u>غذا</u> اړتیا لرو. (د جنس نوم).

Ex: <u>The food</u> of our country is delicious. (common noun).

مثال: زموږ د هېواد <u>غذا</u> خوندوره ده. (عام اسم).

## 5. Compound Noun مرکب اسم

Compound noun is a noun which is formed by the combination of two or more than two nouns.

مرکب اسم هغه اسم دی چې له دوو یا له دوو څخه له زیاتو اسمونو څخه جوړ شوی وي.

Ex: <u>Shop</u><u>keeper</u> (دوکاندار), <u>Drug</u> <u>Store</u> (درملتون), etc... ...اونور

Shop ↓ Noun, keeper ↓ Noun; Drug ↓ Noun, Store ↓ Noun

### ☞ Compound Nouns are divided in to three parts:

مرکب اسمونه په دریو برخو وېشل شوي دي:

### a) Simple Compound Noun ساده مرکب اسم

Simple compound noun is a noun which is written as one word.

ساده مرکب اسم هغه اسم دی چې د یوې کلمې په څېر لیکل کېږي.

Ex: Shortcut.

**b) Open Compound Noun خلاص مرکب اسم**

Open compound noun is a noun which is written as two words.
خلاص مرکب اسم هغه اسم دی چې د دوو کلیمو په څېر لیکل کېږي.

Ex: Book keeper, House work etc…

**c) Hyphenated Compound Noun فاصله لرونکی مرکب اسم**

Hyphenated Compound noun is a noun which is separated by hyphen.
فاصله لرونکی مرکب اسم هغه اسم دی چې د فاصلې په واسطه جلا شوی وي.

Ex: Father – in – law, Commander – in – chief.

## 2) Abstract Noun د مانا اسم

Abstract noun is the noun which doesn't have any foreign or physical existence and can not be touchable.
د مانا اسم هغه اسم دی چې خارجي یا فزیکې وجود ونلري او د لمس قابلیت هم نلری.

Ex: Bravery, Darkness, Knowledge etc... مثال: زړه ورتوب، تاریکې، پوهه او داسي نور...

**Note: نوټ**

- **Abstract nouns are formed as follow:**

د مانا اسمونه په لاندې ډول تشکیلېږي:

**❖ From Adjectives** **له صفتونو څخه**

Ex: Kind – <u>Kindness</u>. مثال: مهربان- <u>مهرباني</u>.

Ex: Brave – <u>Bravery</u>. مثال: زړه ور- زړه <u>ورتوب</u>.

## ❖ From verbs له فعلونو څخه

Ex: Obey – <u>Obedience</u>. مثال: قبلول ـ <u>قبلوه نه</u>.

Ex: Grow – <u>Groth</u>. مثال: لوی کېدل ـ <u>لوی کېدنه</u>.

## ❖ From common nouns له عام اسمونو څخه

Ex: Child – <u>Childhood</u>. مثال: ماشوم ـ <u>ماشوم توب</u>.

**Note:** The names arts and sciences are also abstract nouns.
نوټ: د هنرونو او علومو نومونه هم د مانا اسمونه دي.

Ex: Math, Chemistry, Grammar etc… مثال: رياضي، کيميا، گرامر اونور...

**نوټ:** د دې ذکر شوو نومونو برسېره کولای شو اسمونه د شمېرلو او نه شمېرلو له مخې هم طبقه بندي کړو.

### ⇨ Countable nouns شمېرل کېدونکي اسمونه

Countable nouns are those nouns that can be counted.
شمېرل کېدونکي اسمونه هغه اسمونه دي چې شمېرل کېدای شي.(د شمېرولو وړ وي).

Ex: Apple, cup, human etc… مثال: مڼه، پياله، انسان او نور...

**Note:**نوټ

**1)** We can use the indefinite article (a/an) with countable nouns.
موږ کولای شو د شمېرل کېدونکي اسمونو سره نامعين د تعريف توری(a/an) استعمال کړو.

En: A cow is an animal. مثال: غوا يو حيوان ده.

**2)** When a countable noun is singular, we use a word like (a/an, the, this, my) with it.

کله چې یو شمېرل کېدونکی اسم مفرد وي، موږ د (a/an, the, this, my) کلیمې له هغوی سره استعمالوو.

Ex: I need a pen. مثال: زه یوه قلم ته ضرورت لرم.

**3)** When a countable noun is plural, we can use it alone.
کله چې یو شمېرل کېدونکي اسم جمع وي، موږ کولای شو هغه یوازې استعمال کړو.

Ex: I like apples. مثال: زه مڼې خوښوم.

**4)** We can use (Some) and (any) with countable nouns.
کولای شو چې د شمېرل کېدونکو اسمونو سره (Some) او (any) استعمال کړو.

Ex: I have got some dollars. مثال: زه یو اندازه ډالران لرم.

Ex: Have you got any books? مثال: آیا ته یوه اندازه کتابونه لرې؟

**5)** We can use (a few) and (many) with countable nouns.
کولای شو د شمېرل کېدونکي اسمونو سره د (many) او (a few) کلیمې استعمال کړو.

Ex: I have got a few afghanis. مثال: زه یو څو افغانۍ لرم.

Ex: I haven't many pens. مثال: زه ډېر قلمونه نه لرم.

## ⇨ Uncountable nouns(Mass nouns) نه شمېرل کېدونکی اسم

Uncountable nouns are those nouns that can't be counted.
نه شمېرل کېدونکي اسمونه هغه اسمونه دي چې شمېرل کېدای نشي.

Ex: water, suger, gas etc… مثال: اوبه، بوره، ګاز او نور...

نوټ: د نه شمېرل کېدونکي اسمونو لپاره يوه ځانګړې قاعده وجود لري چې د هغه په واسطه مورږ د هغه مقدار ښيو چې (Quantity+noun) ورته ويل کيږی؛ په دې مانا چې د اسم مخکي د هغه مقدار ذکر کيږی.

Ex: two litter water. مثال: دوه ليتره اوبه.

**Note:نوټ**

1) The indefinite article **(a/an)** can't be used with uncountable nouns.

غير معين د تعريف توري**(a/an)** نشي استعمالېداي.

Ex: a water. (incorrect). مثال: يوه اوبه. (غلط).

Ex: Water.(correct). مثال: اوبه. (صحيح).

2) (Any) and (some) can be used with uncountable nouns.

(any) او (some) له نه شمېرل کېدونکې اسمونو سره استعمالېدای شي.

Ex: I've got some money. مثال: زه يوه اندازه پيسې لرم.

# Noun Gender

# د اسم جنسيت(نوعيت)

A noun is always considered according to being male , Femal or neuter.

اسم همېشه د مذکر والي، مونث والي اويا خنثی والي له مخي سنجول کېږي.

**Or**: The idea of gender is determining a noun according to male, female or being neuter.

اويا: له جنس څخه منظور د يو اسم مذکر والي، مونث والي اويا خنثی والي مطابق تعينول دي.

Ex: Man, womane, chair etc... مثال: سړی، ښځه، څوکۍ او نور...

## 1. Masculine Gender مذکر جنسیت

A noun which denotes a male human or animal is called masculine gender.

هغه اسم چې په مذکر انسان یا حیوان باندې دلالت کوي مذکر جنسیت بلل کېږي.

Ex: Father, boy, lion, king etc... مثال: پلار، هلک، زمری، پادشاه اونور...

## 2. Feminine Gender مونث جنسیت

A noun which denotes a female himan or animal is called feminine gender.

هغه اسم چې په مونث(ښځېنه) انسان یا حیوان باندې دلالت کوي مونث جنسیت بلل کېږي.

Ex: Mother, sister, fox etc… مثال: مور، خور، ګیدړه اونور...

## 3. Common Gender عام جنسیت

A noun which denotes both male and female human and animal is called common gender.

هغه اسم چې په مذکر او مونث انسان او حیوان (دوارو) باندی دلالت وکړی عام اسم بلل کېږي.

Ex: Child, student, teacher, animal etc… مثال: ماشوم، زده کوونکی، ښوونکی، حیوان اونور...

## 4. Neuter Gender خنثی جنسیت

A noun which denotes neither male nor female (a thing without life) is called neuter gender.

هغه اسم چې نه په مذکر او نه په مونث (هغه شی چې بې ساه وي) دلالت وکړي خنثی جنسیت بلل کېږي.

Ex: Stone, glass, book etc... مثال: ډبره، ګیلاس، کتاب اونور...

# Pluralization of nouns
# د اسمونو جمع بندي

The general way for pluralization of noun is adding (s) or (es) at the end of the singular nouns.

د اسم د جمع بندي لپاره عمومي طريقه د مفرد اسم په اخېر کې د (s) يا (es) له علاوه کولو څخه عبارت دی.

**Ex:** **مثال:**

- Book – Book<u>s</u>. کتاب ـ کتابونه.
- Watch – Watch<u>es</u>. ساعت ـ ساعتونه.

## Rules of addind (s) or (es)
## د (s) اويا (es) د علاوه کولو قاعدې

**1)** Nouns ending in ( s, ss, ch, sh, x, z) take (es) in the plural form.

هغه اسمونه چې په ( s, ss, ch, sh, x, z) ختم شوي وي په جمع شکل کې (es) اختياروي.

**Ex:** **مثال:**

→ Box – Box<u>es</u>. بکس ـ بکسونه.

→ Church – Church<u>es</u>. کليسا ـ کليساګاني.

→ Class – Class<u>es</u>. صنف ـ صنفونه.

→ Fish – Fish<u>es</u>. کب ـ کبان.

**Note: نوټ**

When (ch) give the sound of (k) at the end of the nouns add only (s) in the plural form.

کله چې (ch) د اسمونو په اخېر کې د (k) غږ ورکړي په جمع شکل کې يوازې (s) اختياروي.

Ex: Monarch – Monarch<u>s</u>. مثال: پادشاه ـ پادشاهان.

Ex: Stomach – Stomach<u>s</u>. مثال: معده ـ معدې.

**Note: نوټ**

Nouns ending in a single (z), it is doubled before adding (es).

هغه اسمونه "چې" په مفرد (z) ختمېږي د (es) له اضافه کولو مخکې هغه (z) دوه چنده کېږي.

Ex: Quiz – Quizz<u>es</u>.

**2)** Nouns ending in (y) following a consonant, change (y) into (I) and than add (es).

هغه اسمونه چې په (y) باندي ختم شوي وي او د یو بې غږه توري په تعقیب راغلي وي(د (y) توری څخه مخکې یو بې غږه توری راغلی وي) "نو" (y) په (I) باندي بدلېږي او وروسته (es) ورعلاوه کېږي.

Ex: Army – Armi<u>es</u>. مثال: لښکر ـ لښکري.

Ex: City – Citi<u>es</u>. مثال: ښار ـ ښارونه.

**3)** Nouns ending in (y) following a vowel take only (s) without any change.

هغه اسمونه چې په (y) ختم شوي وي ( اوله (y) څخه مخکې یو غږ لرونکی توری راغلی وي) بې له کوم تغیر څخه د (s) توري اختیاروي.

Ex: Play – Play<u>s</u>. مثال: لوبه ـ لوبې.

Ex: Day – Day<u>s</u>. مثال: ورځ ـ ورځې.

**4)** Nouns ending in (O) following a consonant take (es) in the plural form.

هغه اسمونه چې په (O) ختم شوي وي ( له (O) مخکې یو بې غږه توری راغلی وي) په جمع حالت کې (es) اختیاروي.

Ex: Negro – Negro<u>es</u>. مثال: تورپوست ـ تورپوستې.

Ex: Hero – Hero<u>es</u>. مثال:قهرمان ـ قهرمانان.

☞ **Exceptions استثناوي**

→ Kilo – Kilo<u>s</u>.
→ Photo – Photo<u>s</u>.
→ Piano – Piano<u>s</u>.

**5)** Nouns ending in (O) following a vowel take (s) without any change.
هغه اسمونه چې په (O) ختم شوي وي (اوله (O) څخه مخکي غږلرونکی توری راغلی وي) بې له کوم تغیر څخه (s) اختیاروي.

Ex: Radio – Radio<u>es</u>. مثال: راديو ـ راديو ګاني.
Ex: Vedio – Vedio<u>es</u>. مثال: ويديو ـ ويديو ګاني.

**6)** Nouns ending in (f) or (fe) change (f) or (fe) to (v) than add (es).
هغه اسمونه چې په (f) اويا (fe) باندي ختم شوي وی (f) يا (fe) په (v) باندي بدلېږی وروسته (es) ور اضافه کېږي.

Ex: Wife – Wiv<u>es</u>. مثال: مېرمن ـ مېرمنې.
Ex: Leaf – Leav<u>es</u>. مثال: ورقه ـ ورقې.

☞ **Exceptions استثناوي**

→ Proof – Proof<u>s</u>. ثبوت ـ ثبوتونه.
→ Chief – Chief<u>s</u>. رئيس ـ رئيسان.
→ Roof – Roof<u>s</u>. بام ـ بامونه.

**7)** Nouns ending in (man) except of the proper nouns like German, we change (man) in (men) in the plural form.
هغه اسمونه چې په (man) ختم شوي وي د خاصو اسمونو په استثنا لکه German د جمعي په شکل کې (man) په (men)"باندي" بدلېږي.

**Ex:** **مثال:**

→ Man – <u>Men</u>. سړی ـ سړي.

→ Fisherman – <u>Fishermen</u>. کب نیونکی ـ کب نیوونکي.

**8)** The compound nouns are usually pluralized in the last noun.
مرکب اسمونه معمولاً په اخیري اسم کې جمع کېږي.

Ex: Drug store – Drug store<u>s</u>. مثال: درملتون ـ درملتونونه.

Ex: Forming land – forming land<u>s</u>. مثال: کرنېزه ځمکه ـ کرنېزې ځمکې.

**9)** Compound nouns separated by preposition, are usually pluralized in the main noun.
"هغه" ترکیبي اسمونه چې د اضافي توري په واسطه جلا شوي وي معمولاً د هغه اصلي اسم جمع بندي کېږي.

Ex: Father in law – Father<u>s</u> in law. مثال: خُسر ـ خُسران.

Ex: Sister in law – Sister<u>s</u> in law. مثال: وربنداره ـ وربنداري.

**10)** Eight nouns form their oplural by a vowel change.
اته اسمونه خپل د جمعي شکل د يو غږلرونکي توري د تغير په واسطه تشکيلوي.

**Ex:** **مثال:**

→ Foot – F<u>ee</u>t. پښه ـ پښې.

→ Tooth – T<u>ee</u>th. غاښ ـ غاښونه.

→ Mouse – M<u>i</u>ce. موږک ـ موږکان.

→ Goose – G<u>ee</u>se. قاز ـ قازان.

→ Man – M<u>e</u>n. سړی ـ سړي.

→ Woman – Wom<u>e</u>n. ښځه ـ ښځې.

→ Louse – L<u>i</u>ce. مږه – مږي.

**11)** Some of the nouns always written in the plural form, because they are paired.

ځيني اسمونه همېشه په جمع شکل ليکل کېږي ځکه هغوی جوړه(جفت) دي.

Ex: Shoes, Gloves etc…

مثال: بوټونه، دستکشونه او داسي نور...

**12)** Some nouns are irregulary pluralized becsuse they are originally Latin.

ځيني اسمونه په بې قاعده ډول جمع بندي کېږي ځکه هغوی په حقيقت کې لاتيني"رېښه" لري.

**Ex:** **مثال:**

| | |
|---|---|
| Datum – <u>Data</u> | اطلاع ـ <u>اطلاعات</u> |
| Child – <u>Children</u> | ماشوم ـ <u>ماشومان</u> |
| Ox – <u>Oxen</u> | غوی ـ <u>غوايان</u> |

**13)** The letters, numbers and other symbols are pluralized by adding (‘s).

توري، عددونه او نور سمبولونه د (‘s) د علاوه کولو په واسطه جمع کېږي.

Ex: 8 – 8’<u>s</u>.

Ex: M – M’<u>s</u>.

**14)** Some nouns are plural in form but singular in meaning.

ځيني اسمونه په شکل کې جمع مگر په مانا کې مفرد دي(په مانا کې په مفرد اسم دلالت کوي).

**Ex:** **مثال:**

| | |
|---|---|
| Mathematics | د رياضي علم |
| Politics | د سياست علم |
| Ethics | د اخلاقو علم |

# Sentence جمله

A group of related words which has a subject and predicate and makes a complete sense is called sentence.

د کلیمو یو ګروپ چې د مبتدا اوخبر درلودونکي وي او یوه پوره مانا ورکړي جمله بلل کېږي.

**Or**: A group of words that gives complete sense is called sentence.

اویا: د کلیمو یو ګروپ چې پوره مانا ورکوي جمله بلل کېږي.

Ex:Shafiq studies English every day. مثال: شفیق هره ورځ انګلیسي مطالعه کوي.

- **The sentences are divided into three parts in form:**

**جملې د شکل له مخې په دریو برخو وېشل شوي دي:**

1. Simple sentences. ساده جملې
2. Complex sentences. پېچلي جملې
3. Compound sentences. مرکبي جملې

## 1. Simple Sentences ساده جملې

A sentence which has one subject and a predicate or has only a finite verb is called simple sentence.

**هغه جمله چې یو مبتدا او یو خبر ولري اویا "هم" یو محدود فعل ولري ساده جمله بلل کېږي.**

Ex: I play football every morning. مثال: زه هر سهار د فوټبال لوبه کوم.

Ex: Najeeb went to Kandahar. مثال: نجیب کندهار ته ولاړ.

## 2. Complex Sentences پېچلې جملې

A sentence which has one principle and one or more than one subordinating clauses is called complex sentence .

هغه جمله چې یوه اصلي او یوه یا له یوې څخه زیاتې فرعي قضیې ولري پېچلې جمله بلل کېږي.

Ex: This is Ahmad <u>which</u> studies every night.

مثال: دغه احمد دی <u>چې</u> هره شپه مطالعه کوي.

Ex: Noor Ahmad is a teacher <u>who</u> teaches well.

مثال: نوراحمد یو ښوونکی دی <u>چې</u> ډېر ښه تدریس کوي.

## 3. Compound sentences مرکبې جملې

When two simple sentences are joined by a conjunction, is called compound sentence.

کله چې دوه ساده جملې د یو ربطي توري په واسطه سره وصلې شي مرکبې جملې بلل کېږي.

Ex: Samiullah is a teacher <u>but</u> Sifatullah is an engineer.

مثال: سمیع الله یو ښوونکی دی <u>مګر</u> صفت الله یو انجنیر دی.

Ex: I can speak English <u>and</u> Ahmad is too.

مثال: زه په انګلیسي ژبه خبرې کولای شم <u>او</u> احمد هم.

- **The sentences are divided into four parts in meaning:**
  **جملې د مانا (مفهوم) له مخې په څلورو برخو وېشل شوي دي:**

## 1) Declarative Sentences خبري جملې

A sentences which expresses a statement or assertion, is called declarative sentence.

هغه جمله چې یوه بیانیه یا خبر څرګند کړي خبري جمله بلل کېږي.

Ex: I saw Karrim yesterday. مثال: ما تېره ورځ کریم ولید.

Ex: I can not speak Urdu. مثال: زه په اردو خبرې نشم کولای.

## 2) Imperative Sentences امریه جملې

A sentence which expresses a command, request or suggestion, is called imperative sentence.

هغه جمله چې امر، غوښتنه اویا وړاندیز بیانوي امریه جمله بلل کېږي.

Ex: Please close the door! — مثال: لطفاً دروازه بنده کړه!

Ex: May I use your pen? — مثال: "اجازه" ده "چې" ستا قلم استعمال کړم؟

Ex: Don't go away! — مثال: لطفاً لرې مه ځئ!

### Note: نوټ

In the imperative sentences the subject is omitted because it is known.

په امریه جملو کې مبتداء له منځه وړل کېږي ځکه (چې) هغه معلوم دی.

Ex: You come here please! — مثال: مهرباني وکړه دلته راشه!

(You ↓ له منځه ځي)

Ex: Come here please! — مثال: مهرباني وکړه دلته راشه!

### ➢ Polite request مادبانه غوښتنه

The following combinations are used to express polite requests:

د مادبانه غوښتنې د بیان لپاره لاندي ترکیبونه استعمالېږي:

### ❖ Would you please? آیا لطفاً به؟

Ex: Would you please the room? — مثال: آیا لطفاً به اطاق پاک کړې؟

### ❖ Would you mind? آیا ممکنه ده بې زحمته؟

Ex: Would you mind ringing me? — مثال: آیا ممکنه ده بې زحمته راته زنګ ووهې؟

### ❖ **Will you please?** آیا لطفاً به؟

Ex: Will you please be quiet? مثال: آیا لطفاً به خاموشه و اوسې؟

### ➢ **Affirmative imperatives sentences** مثبتې امریه جملې

Ex: Come here! مثال: دلته راشه!

Ex: Please look me! مثال: لطفاً ماته وګوره!

### ➢ **Negative imperative sentences** منفي امریه جملې

Ex: Don't sit down! مثال: مه کښېنه!

Ex: Don't speak loud! مثال: تېزي خبري مه کوه!

### ➢ **Analysis of a sentence structure** د یوې جملې د جوړښت تجزیه

### ☞ **Subject (مبتدا)**

(مبتدا) مخکې د فاعلي ضمیرونو په بحث کې مکمل تشریح شوي دی.

### ☞ **Predicate (خبر)**

Predicate is a part of sentence which tells something about subject , including the verb up to end of the sentence forms predicate.

خبر د جملې هغه برخه ده چې د مبتدا په باره کې خبري کوي د فعل په شمول تر اخیره "ټوله" جمله خبر تشکیلوي.

⇨ **The words which are used in predicate are as follow:**
**هغه کلیمې چې په خبر کې استعمالیږي په لاندی ډول دي:**

**1.** The essential word in the predicate is verb that can be either transitive or intransitive.
په خبر کې مهمه کلمه فعل دی چې کېدای شي لازمي وي یا متعدي وي.

Ex: Ahmad broke the chair. مثال: احمد څوکۍ ماته کړه.

Ex: The boby cries every night. مثال: ماشوم هره شپه ژاړي.

**2.** Adverb or Adverb phrase which qualifies the verb.
قید یا قیدي عبارت چې فعل معینوي.

Ex: Shabeer spoke very clearly. مثال: شبیر ډیر په واضح ډول خبري کوي.

**3.** Infinitives and Gerund. مصدر او مصدري اسم.

Ex: I like swimming. مثال: زه لامبو وهل خوښوم.

Ex: They want to go مثال: هغوی غواړي "چې" ولاړ شي.

**4. Object**: which can be either a noun or pronoun.
مفعول: کېدای شي چې اسم یا ضمیر وي.

Ex: I like him. مثال: زه هغه خوښوم.

Ex: Baseer wrote a letter. مثال: بصیر یو خط ولیکه.

## ☞ Complement تکمیل کوونکی

تکمیل کوونکی مخکي مکمل تشریح شوي دی.

## 3) Interrogative sentences پوښتنېزې (سواليه) جملې

A sentence which asks a question is called interrogative sentence.
هغه جمله چې يو سوال پوښتي پوښتنېزه جمله بلل کېږي.

**Note: نوټ**

**An interrogative sentence is formed by three ways**
يوه پوښتنېزه جمله په دريو طريقو تشکيلېږي:

**1.** By using (Wh) questions at the beginning of the sentences. (Direct question).
د جملو په سرکې د (Wh) په استعمالولو سره.(مستقيم سوال).

Ex: <u>Wh</u>at is your job? مثال: ستاسي وظيفه څه شی دی؟

**2.** By using auxiliary verbs at the beginning of the sentences. (indirect question).
د جملو په سر کې د کومکي فعلونو په استعمالولو سره.(غير مستقيم سوال).

Ex: <u>Can</u> you play chess? مثال: آيا ته د سطرنج لوبه کولاي شي؟

## 4) Exclamatory sentences ندائـي(غږېزي) جملې

A sentence which expresses a strong feeling or emotion is called exclamatory.
هغه جملې چې يو قوي احساس يا هيجان بيان کړي ندايه جمله بلل کېږي.

Ex: What a beautiful car it is! مثال: څه يو ښکلی موټر دی!

Ex: How awful he acted! مثال: څومره بد چلند يې وکړ!

# Gerund د مصدراسم

Gerund is the (ing) form of a verb which does the work of a noun.

د مصدراسم د فعل د (ing) شکل دی چې د یو اسم کار سرته رسوي.

Gerund has both the force of a noun and a verb.

د مصدر اسم هم د اسم او هم د فعل "وظیفه" لري.

Ex: Speak<u>ing</u>, Read<u>ing</u>, teach<u>ing</u> etc... مثال: خبري کول، لوستل، تدریس کول او نور...

## Uses of Gerund د مصدر د اسم استعمالات

**1.** As the subject of the sentence: د جملې د مبتدا په حیث:

Ex: <u>Working</u> is a good exercise. مثال: <u>کار کول</u> یو ښه تمرین دی.

Ex: <u>Swimming</u> is usefull for health. مثال: <u>لامبو وهل</u> د روغتیا لپاره ګټوره ده.

**2.** As the object of a transitive verb: د یو متعدي فعل د مفعول په حیث:

Ex: Please stop <u>playing</u>! مثال: لطفاً <u>لوبه کول</u> پرېږدئ!

Ex: I like <u>reading</u> magazines. مثال: زه د مجلو <u>لوستل</u> خوښوم.

**3.** As the complement of the sentence: د جملې د تکمیل کوونکي په حیث:

Ex: I like <u>studying</u>. مثال: زه <u>مطالعه کول</u> خوښوم.

Ex: Saleem does not like <u>swimming</u>. مثال: سلیم <u>لامبو وهل</u> نه خوښوي.

**4.** As an adjective befor noun: د صفت په حیث له اسم څخه مخکې:

Ex: He prolongs a <u>speaking</u> class. مثال: هغه د <u>مکالمې</u> ټولګي ته ادامه ورکوي.

**5.** As the complement of preposition: د اضافي توری د تکمیل کوونکی په حیث:

Ex: We come here for <u>learning</u>. مثال: موږ دلته د <u>زده کړې</u> لپاره راځو.

Ex: He prevents me from <u>going</u> alone. مثال: هغه ما له یوازې <u>تګ</u> څخه منع کوي.

**6.** Gerund is also used for prevented actions in the plaques and attention:

د مصدر اسم د عملونو د مخنیوي او د توجه لپاره په لوحو کې هم استعمالېږي:

Ex: No <u>smoking</u>. مثال: <u>څکول</u> "منع" دي.

# Infinitive مصدر

The base form of a verb which is often followed by (to) is called infinitive.

د فعل اساسي شکل چې اکثره له (to) سره یوځاي کېږي مصدر بلل کېږي.

**Or**: Infinitive is the base form of a verb which expresses an action or state feerly.

اویا: مصدر د فعل اساسي شکل دی چې عمل یا حالت په ازاد ډول بیانوي.

**Like**: <u>To</u> study, <u>To</u> play, <u>To</u> go etc… لکه: مطالعه کول، لوبه کول، تلل او نور...

Ex: <u>To study</u> English is useful. مثال: د انګلیسي مطالعه کول ګټوره ده.

## ➢ Uses of infinitive د مصدر استعمالات

**1.** As the subject of the sentence: (before the main verb ).

د جملې د مبتدا په حیث: (له اصلي فعل څخه مخکې).

Ex: <u>To exercise</u> sport is useful for health. مثال: د سپورت تمرین کول د روغتیا لپاره ګټور دی.

**2.** As the object of a transitive verb: د یو متعدي فعل په حیث:

Ex: I wish to become a doctor. مثال: زه ارزو لرم (چې) په راتلوونکي کې ډاکتر شم.

**3.** Infinitive can be used with (to be + about) to express an immediate future.
مصدر کېداي شي له (to be + about) سره یو ځاي استعمال شي "ترڅو" نږدې راتلوونکی بیان کړي.

Ex: The class is about to start. مثال: ټولگی شروع کېدلو ته نږدې ده.

Ex: Ali is about to leave the Kabul. مثال: علي د کابل ترک کولو ته نږدې دی.

**4.** Infinitive can be used alone: (at the end of the sentence).
مصدر کېدای شي یوازي استعمال شي: ( د جملې په اخېر کې).

Ex: I like to read. مثال: زه لوستل خوښوم.

**5.** Infinitive can be used after adjectives in the sentences:
مصدر کېداي شي په جمله کې له صفتونو څخه وروسته استعمال شي:

Ex: I am pleased to meet you. مثال: ستاسو له ملاقات څخه خوښ شوم.

**6.** Infinitive is also used to express an intention.
مصدر د مقصد لپاره هم استعمالېږي.

Ex: I come to see you here. مثال: زه دلته راځم "چې" تاسو ووینم.

Ex:We study to improve our knowledge. مثال: موږ مطالعه کوو "ترڅو" خپل علم ته انکشاف ورکړو.

**7.** Infinitive is also used to qualify and modify a noun.
مصدر د اسم د معینولو او بهتر کولو لپاره هم استعمالېږي.

Ex: This is not the time to play. مثال: دا د لوبې کولو وخت ندی.

# Tag questions
# ضمېمه يي سوالونه

Tag questions are short additions at the end of the sentences asking for agreement or confirmation.

ضمېمه يي سوالونه هغه لنډ ضمايم دي (چې) د جملو په اخېر کې د تايد يا تصديق لپاره پوښتنه کوي.

Ex: Omer is a doctor, isn't he? مثال: عمر يو ډاکټر دی، آيا ندی؟

Ex: You play chess, Do not you? مثال: تاسي د سطرنج لوبه کوئ، آيا همداسي نده؟

## Rules: قاعدې

**1)** Affirmative sentences are followed by negative tags.

مثبتي جملې د منفي ضمايمو په واسطه تعقيبېږي(ترسره کېږي).

Ex: I go to school, Don't I? مثال: زه ښوونځي ته ځم، آيا نه ځم؟

Ex: Ali speaks Arabic, Doesn't he? مثال:علي په عربي خبري کوي، آيا نه يې کوي؟

**2)** Negative sentences are followed by affirmative tags.

منفي جملې بيا د مثبتو ضمايمو په واسطه تعقيبېږي. (ترسره کېږي).

Ex: He does not tell lie, Does he? مثال: هغه درواغ نه وايي، آيا وايي يې؟

Ex: You are not come here, Are you? مثال: ته دلته نه راځې، آيا راځې ؟

## Note: نوټ

If the sentence contains auxiliary verbs the auxiliary verb itself is repeated as subject of the tag otherwise we use (to do) verbs.

که چېري په جمله کې کومکي فعل موجود وي کومکې فعل پخپله د ضميمې په حيث تکرارېږي او بغير له هغه څخه موږ د (to do) فعلونه استعمالوو.

Ex: Ahman can speak Urdu, Can't he? مثال: احمد په اُردو خبري کولای شي، آیا نه یې شي کولای؟

Ex: We went to the party, Didn't we? مثال: موږ مېلمستیا ته ولاړو، آیا نه ولاړو؟

**3)** The imperative sentences have the tag (will you) or (would you) .

امریه جمله د (will you) یا (would you) ضمېمه لري.

Ex: Please close the door! will you? مثال: لطفاً دروازه بنده کړه! آیا بنده به یې کړې؟

Ex: Please, be quite! would you? مثال: لطفاً خاموشه اوسئ! آیا خاموش به سئ؟

**4)** The sentences which have request or demand form have the tag (will not you) or (won't you).

هغه جملې چې غوښتنه یا درخواست ولري د (will not you) یا (won't you) ضمیمه لري.

Ex: Have a drink! Won't you? مثال: څه شي وڅښه! آیا وبه یې نه څښې؟

Ex: Have a seat! Will not you? مثال: لطفاً راشه کښېنه ! آیا نه به کښېنې؟

**نوټ:** په هغو جملو کې چې please استعمال شوي وي باید توجه وشي چې آیا له نږدې امر سره دی اویا له غوښتني سره . په هغه صورت کې چې له نږدې امر سره وي نو د (will you) له ضمیمې څخه کار اخېستل کېږي او که چېري له نږدې غوښتنې سره وي په هغه صورت کې د (will not you) له ضمېمې څخه کار اخېستل کېږي.

**5)** The sentences which are started by (Let's) have the tag (shall we).

هغه جملې چې په (Let's) شروع شوي وي د (shall we) ضمېمه لري.

Ex: Let's chess! Shall we? مثال: راځه چې د سطرنج لوبه وکړو! آیا وبه یې کړو؟

Ex: Let's go to the bazaar! Shall we? مثال: راځه چې بازارته ولاړ شو! آیا ولاړ به شو؟

**6)** Sentences which contain words such as (Never, no, none, scarcely, rarely, hardly ever, seldom) etc… are considered as negative and have the positive tags.

**هغه جملې چې د** (Never, no, none, scarcely, rarely, hardly ever, seldom)
**او داسې نورو... کلیمو درلودونکي وي منفي جملې شمېرل کېږي او مثبتې ضمېمې لري.**

Ex: I never tell lie, <u>Do I</u> ?　　مثال: زه هېڅکله دروغ نه وایم ، <u>آیا همداسې نده</u>؟

Ex: We studied neither book, <u>Did we</u>?
مثال: موږ هیڅ کتاب ندی مطالعه کړي، <u>آیا همداسې نده</u>؟

**7)** When the subject of the sentence, are words like ( nobady, anybody, somebody etc…) the pronoun (they) is used as the subject of the tag.

**کله چې د جملې مبتدا د** ( nobady, anybody, somebody **او نوري...) کلیمي وي د**
(they) **ضمیر د مبتدا د ضمیمي په حیث استعمالیږي.**

Ex: Nobady came to the party, <u>Did they</u>? مثال: هیڅوک مېلمستیا ته ندی راغلي ،<u>آیا راغلي دی</u>؟

Ex: Somebody broke the glass, <u>Didn't they</u>?　　مثال: یو کس ښیښه ماته کړه، <u>آیا همداسې نده</u>؟

**8)** The tag of (I am) is (aren't I).　　د (I am) ضمېمه (aren't I) ده.

Ex: <u>I am</u> a tailor, <u>aren't I</u> ?　　مثال: زه یو خیاط یم، <u>آیا نه یم</u>؟

**9)** The tag of ( I am not) is (am I).　　د ( I am not) ضمېمه (am I) ده.

Ex: <u>I am not</u> a doctor, <u>am I</u>?　　مثال: زه یو ډاکتر نه یم، <u>آیا یم</u>؟

**یادونه:** دغه استثنا یوازې په بریتانوي انګلیسي کې ده.( د ۹ نمبر ضمېمه).

**10)** The sentences which have positive form but express a negative meaning that have the positive tags.
هغه جملې چې مثبت شکل لري مګر منفي مفهوم بیانوي هغه مثبت ضمایم لري.

Ex: Khalid is too fat to run fast, Is he?
مثال: خالد له هغه څخه چاغ دی چې منډې وهي، آیا همداسې ندی؟

Ex: Jamila is too small to get married, Is she?
مثال: جمیله له هغه څخه کوچنۍ ده (چې) واده وکړي، آیا همداسې نده؟

# Conditional sentences
# شرطیه جملې

Conditional sentences are those which are formed by (If) or (whether) and express a condition.
شرطیه جملې هغه دي چې د (If) یا (whether) په واسطه تشکیلېږي او یو شرط بیانوي.

Ex: If I were the presedent, I would help the poor.
مثال: که چېري زه ولسمشر وای، (نو) ما به له فقیرانو سره مرسته کوله.

➢ **Conditional sentences are divided into two parts:**
شرطیه جملې په دوو برخو وېشل شوي دي:

1) Probable conditional sentences. ممکنه شرطیه جملې
2) Improbable conditional sentences. نا ممکنه شرطیه جملې

## 1) Probable Conditional Sentences ممکنه شرطیه جملې

The probable conditions are those which indicate a possible action that is to say , in these conditions it is possible to perform the action.

ممکنه شرطیه جملې هغه دي چې په ممکن عمل باندي دلالت کوي یا په بل عبارت په دغو شرطیه "جملو" کې د عمل سرته رسولو امکان موجود دی.

## Note: نوټ

The probable conditionl sentences are usually formed in the present and future tenses.

شرطیه جملې معمولاً په حال او راتلوونکي زمانو کې تشکیلېږي.

Ex: <u>If</u> you drink dirty water, you will get sick!

مثال: <u>که چېري</u> چټلې اوبه وڅښې ، ناروغ به شې!

Ex: Whether it is sunny, we will go to the pool for swimming.

مثال: <u>که چېري</u> هوا لمریزه وي، موږ به لامبو وهلو ته ولاړ شو.

Ex: If he comes here, we shall go to the bazaar.

مثال: <u>که چېري</u> هغه راشي، موږ به بازار ته ولاړ شو.

## 2) Improbable Conditional sentences. نا ممکنه شرطیه جملې

The improbable conditional sentences are those which indicate an improbable action, that is to say, in these conditions there is no possibility to perform the action.

ناممکنه شرطیه جملې هغه دي چې په ناممکن عمل باندي دلالت کوي، په بل عبارت په دې "نوع" شرطیه "جملو" کې د عمل د سرته رسېدلو امکان موجود نه دی.

**Note: نوټ**

The improbable conditional sentences are usually formed in the past tenses.

نامـمکنه شرطیه جملې معمولاً په تېرو زمانو کې استعمالېږي.

Ex: If I came on time, the teacher would let me in the class.

مثال: که چېرې په وخت راغلی وای، استاد به ټولګی ته اجازه راکوله.

Ex: Wheter we went to the party, we would have very happy time.

مثال: که چېرې مېلمستیا ته تللی وای، ډېر خوشحاله وخت به مو درلود.

Ex: If I studied hard, I would pass the exam.

مثال: که چېرې ما پراخه مطالعه کړې وای، "نو" کامیابېدلم.

**Note: نوټ**

It is possible to use (were) instead of (was) for ( I, he, she, it) in the improbable conditions.

ممکنه ده په نامـمکنه شـرطیه (جملـو) کې د ( I, he, she, it) لپاره د (was) په ځای (were) استعمال شي.

Ex: If I were, I would accept it. مثال: که چېرې ستا په ځای وای قبولاوو مې.

# Past perfect tense
# تېره کامله زمانه(لري ماضي)

| Helping verb of P.P tense | د تېري کاملي زماني کومکي فعل |
|---|---|
| Had | Had |

**Structure:** ساختمان

| | |
|---|---|
| **Affirmative form** مثبت شکل | Sub + Had + $V_3$ + Comp.<br>Ex: He had eaten food. مثال: هغه غذا خوړلې وه. |
| **Question form** سواليه شکل | Had + Sub + $V_3$ + Comp?<br>Ex: Had he eaten food? مثال: آيا هغه غذا خوړلې وه؟ |
| **Negative form** منفي شکل | Sub + Had + Not + $V_3$ + Comp.<br>Ex: He had not eaten food. مثال: هغه غذا خوړلې نه وه. |
| **Negative interrogative form** منفي سواليه شکل | Had + Sub + Not + $V_3$ + Comp -?<br>Ex: Had he not eaten food ? مثال: آيا هغه غذا خوړلې نه وه؟<br>Hadn't + Sub + $V_3$ + Comp -?<br>Ex: Hadn't he eaten food ? مثال: آيا هغه غذا خوړلې نه وه؟ |

1. **Usege:** The past perfect tense is used to express that an action completed in the past before other action.

**استعمال:** تېره کامله زمانه د هغه عمل د بيانولو لپاره استعمالېږي چې له يو بل عمل څخه په ماضی کې تکميل شوی وي.

**Or**: Past perfect tense is used to show an action which started before the time of speaking in the past and was just finished.

اويا: تېره کامله زمانه د هغه عمل د بيانولو لپاره استعمالېږي چې د خبري کولو له وخت څخه مخکې شروع شوي او ليږ وروسته ختم شوی وي.

**Diagram:** 

**Note: نوټ**

A (before) clause is usually used with past perfect tense to specify the past action.

د (before) قضیه معمولاً له تېرې کاملې زمانې سره د تېر عمل د معینولو "لپاره" استعمالیږي.

Ex: She had cooked the lunch <u>befor</u> we arrived home.

مثال: مخکې له دې څخه چې موږ کور ته ورسېږو هغې د غرمې ډوډۍ پخه کړې وه.

Ex: Shabeer had finished school <u>befor</u> he got twenty.

مثال: شبیر ترشل "کلنۍ" رسېدلو څخه مخکې ښوونځی ختمه کړې و.

**Note:** In this usage, past perfect tense is used commonly with the simple past tense.

نوټ: په دغه استعمال کې تېره کامله زمانه عموماً له ساده تېرې زمانې سره استعمالیږي.

**Note:** The words (when, befor, because, after, as soon as, till, until etc…) can be used in past perfect tense.

نـوټ: د ( when, befor, because, after, as soon as, till, until او داسې نورې... کلیمې کېداې شي په تېره کامله زمانه کې استعمال شي.

Ex: I had finished my homework, <u>when</u> I went home.

مثال: <u>کله چې</u> کور ته ولاړم، خپله کورنۍ دنده مې خلاصه کړې وه.

**2. Usage:** Past perfect tense is usually used in the indirect speech.

۱. استعمال: تېره کامله زمانه معمولاً په غیر مستقیم کلام کې استعمالیږي.

Ex: Bilal said that Ahmad jan had came here.

مثال: بلال وویل چې احمد جان دلته راغلی وو.

Ex: Abrahim said that Rahim had gone to Kandahar.

مثال: ابراهیم وویل چې رحیم کندهار ته تللی وو.

# Past perfect continuous tense
# تېره کامله جاري زمانه

| Helping verb of P.P.C tense | د تېري کاملي جاري زمانې کومکي فعل |
|---|---|
| Had been | Had been |

**Structure:** ساختمان

| | |
|---|---|
| **Affirmative form** مثبت شکل | Sub + Had + been + V- ing + Comp.<br>Ex: Amran had been studying Pashto. مثال: عمران د پښتو په مطالعه مشغول و. |
| **Question form** سواليه شکل | Had + Sub + been + V- ing + Comp?<br>Ex: Had Amran been studying Pashto? مثال: آيا عمران د پښتو په مطالعه مشغول و؟ |
| **Negative form** منفي شکل | Sub + Had + Not + been +V- ing + Comp .<br>Ex: Amran had not been studying Pashto. مثال: عمران د پښتو په مطالعه مشغول نه وو. |
| **Negative interrogative form** منفي سواليه شکل | Had + Sub + Not + been +V- ing + Comp -?<br>Ex: Had Amran not been studying Pashto? مثال:آيا عمران د پښتو په مطالعه مشغول نه و ؟<br>Hadn't + Sub + been + V- ing + Comp -?<br>Ex: Hadn't Amran been studying Pashto? مثال: آيا عمران د پښتو په مطالعه مشغول نه و؟ |

**1) Usage:** Past perfect continuous is used to show the duration of an action which was in progress before another action in the past.

۱) **استعمال**: تېره کامله جاري زمانه د هغه عمل د مودې د بيانولو لپاره استعمالېږي چې په تېر "وخت" کي له بل عمل څخه مخکي د جريان په "حالت" کي وو.

**Diagram:**




Ex: I had been learning English lessons before starting computer.
مثال: زه د کمپيوټر له زده کړي څخه مخکي د انګليسي په زده کړه بوخت وم.

Ex: The police had been looking for the criminal for two years before caught him.
مثال: مخکي له دې چې هغه ونيسي پوليس دوه کاله په مجرم پسي ګرځېده.

**2) Usage:** Past perfect continuous tense is also used for the actions with emphasis which were in progress before another actions or another time in the past.

۱) **استعمال**: همدارنگه تېره کامله زمانه د هغو عملونو چې له تاکید سره په تېره زمانه کې له نورو عملونو اویا له بل وخت څخه مخکې په جریان کې وي استعمالېږي.

Ex: He had been teaching us until we become teachers.

مثال: هغه موږ ته تدریس کاوو ترڅو چې موږ ښوونکي شوو.

# Phrase عبارت

Phrase is a group of related words which acts as a word and does not have subject and predicate and it cannot work like a sentence .

عبارت د تړل شـوو کلیمـو یو ګروپ دی چې د یوې کلیمـې په حیث کار کوي او د مبتدا او خبر لرونکی نه وي او هغه د یوې جملې په څیر کار نشي کولای.

**Or**: Phrase is a group of words which does not make a complete sense.

**اویا**: عبارت د کلیمو یو ګروپ دی چې کامل مفهوم نه افاده کوي.

**Exs:** **مثالونه:**

- ✓ As likely as not. — احتمالاً، شاید
- ✓ By no means. — په هیڅ وجه.
- ✓ For all I know. — تر کومه ځایه چې زه پوهېږم.
- ✓ In course of time. — د وخت په تېرېدو سره.
- ✓ That is to say. — په بل عبارت.
- ✓ Well done. — آفـرین.
- ✓ Shame on you. — شرم وکړه.
- ✓ As along as. — تر هغه وخت چې.
- ✓ Run away. — فرار کول.

# ☞ Phrasal verbs: عبارتي فعلونه

Phrasal verbs are the combination of prepositions or adverbs after the verbs so as to get several meaning which are common in modern English.

عبارتي فعلونه د فعل څخه وروسته د اضافي تورو اويا قيدونو ترکيب دی(چې) مختلفي ماناګاني ور څخه حاصلېږي چې په عصري انګليسي کې "ډېر" عام دی.

## ❖ Phrasal verbs are divided into two parts:

عبارتي فعلونه په دوو برخو وېشل شوي دي:

### 1. Separable phrasal verbs. جلا کېدونکي عبارتي فعلونه

Separable phrasal verbs are those that we can use a noun or pronoun between verb and preposition.

جلا کېدونکي عبارتي فعلونه هغه دي چې موږ وکولاي شو (چې) يو اسم يا ضمير د فعل او اضافي توري ترمنځ استعمال کړو.

**Like:** **مثال:**

- Throw away. لري غورځول.
- Wake up. بيدارول، بيداره کېدل.
- Hand in. لېږل، تسليمېدل.
- Fill out. تکميلول، جواب ورکول.
- Find out. پيدا کول، کشفول.

Phrasal verb عبارتی فعل

Ex: Abrahim threw the ball away. مثال: ابراهيم توپ وړاندي وغورځاوو.

Noun اسم

### 2. Inseparable Phrasal verbs. نه جلا کېدونکي عبارتي فعلونه

Inseparable phrasal verbs are those that we can not use a noun or pronoun between verb and preposition.

نه جلا کېدونکي عبارتي فعلونه هغه دي چې موږ نشو کولای (چې) یو اسم یا ضمیر د فعل او اضافي توري ترمنځ استعمال کړو.

**Like:** **لکه:**

- Call on. بلل، دعوت کول، پوښتل.
- Come across. پیدا کېدل، ښکاره کېدل.
- Drop out. اېسته کېدل، درېدل.
- Look after. توجه لرل په، سرپرستي کول.
- Pass away. مړکېدل، تسلیمېدل.

Ex: I <u>called on</u> Sadiq. مثال: ما صادیق دعوت کړ.

↓ Phrasal verb (called on)
↓ Noun (Sadiq)

# Adjective صفت

Adjective is a word which modifies a noun or pronoun and gives extra information about a noun and we usually use it before a noun.

صفت هغه کلیمه ده چې یو اسم یا ضمیر بهتره کوي (تنظیموي) او د اسم په باره کې اضافي معلومات ورکوي او موږ معمولاً هغه له اسم څخه مخکې استعمالوو.

**Or**: Adjective is a word which completes the meaning of a noun qualifies a noun .

اویا: صفت هغه کلیمه ده چې د اسم مانا تکمیلوي او یا د یو اسم ستاینه کوي.

Ex: Wardag is a <u>nice</u> place. مثال: <u>وردگ</u> یو ښکلی ځای دی.

Ex: Ajmal is a <u>clever</u> boy. مثال: اجمل یو <u>ځیرک</u> هلک دی.

# Note: نوټ

**1)** An adjective which is used along with a noun as an attribute is called attributive or direct adjective.

هغه صفت چې له اسم سره یو ځای د ستاینې په حیث استعمالیږي توصیفي یا مستقیم صفت بلل کیږي.

Ex: This is a small class. — مثال: دغه یوه کوچنۍ ټولګی ده.

Ex: Ahmad is a talented student. — مثال: احمد یو با استعداده زده کوونکی دی.

**2)** An adjective which is used along with a verb and forms part of a predicate is called predicative or indirect adjective.

هغه صفت چې له فعل سره یوځای استعمالیږي او د خبر یوه برخه یې تشکیل کړې وي خبري یا غیر مستقیم صفت بلل کیږي.

Ex: The cat in the garden is fat. — مثال: هغه پشي "چې" په باغ کې ده چاغه ده.

Ex: Sediqullah seems happy. — مثال: صدیق الله خوشحاله معلومیږي.

➢ **Adjectives are divided into eight parts:**

صفتونه په اتو برخو ویشل شوي دي:

## 1. Adjctives of Quality. د حالت (څرنګوالی) صفتونه

Adjective of quality are those which show the kind or quality of persons, places and things.

د حالت(څرنګوالي) صفتونه هغه دي چې د اشخاصو، مکانونو او شیانو ډول یا څرنګوالی بیانوي.

**Like**: Tall, Small, Beautiful ect... — لکه: جګ، کوچنی، ښایسته اوداسي نور...

Ex: This is a small class. — مثال: دغه ټولګی کوچنۍ ده.

Ex: Ajmal is a tall boy. — مثال: اجمل یو جګ هلک دی.

**Note: نوټ**

When article (The) is used before these adjectives they are changed to nouns.

کله چې د (The) تعریف توری له صفتونو څخه مخکې استعمال شي په اسم بدلېږي.

(د اشخاصو په معرفي کولو دلالت کوي) .

Ex: The poor are usually generous to teach other.

مثال: فقیران معمولاً له نورو څخه سخي دي.

Ex: After the battle they buried the dead. مثال: وروسته له جګړې څخه هغوی مړي ښخ کړل.

## 2. Adjectives of Quantity. د مقدار یا کمیت صفتونه

Adjectives of Quantity are those which show how much of a thing is meant.

د مقدار صفتونه هغه دي ښيي چې څومره یو شی "په نظر" کې دي. (د یو شي اندازه ښيي).

| **Some Adjectives of Quantity د مقدار ځیني صفتونه** | | | |
|---|---|---|---|
| Some | یوه اندازه | Any | یوه اندازه |
| Little | لږ | Few | لږ |
| Many | ډېر | Much | ډېر |
| All | ټول | Whole | ټول، تمام |
| No | هیڅ | Enough | کافي |

Ex: Afghans showed much courage in war.

مثال: افغانان په جګړه کې ډېره زړورتیا ښکاره کړه.

Ex: Azatullah found some money. مثال: عزت الله یوه اندازه پیسې پیدا کړې.

یادونه: "Some" او "Any" دواړه له شمېرونکي او غیر شمېرونکي اسمونو سره استعمالېږي

"Some" په مثبته بیانیه او سوالیه جملو کې استعمالېږي او "Any" په منفي بیانیه او سوالیه جملو کې استعمالیږي.

Ex: We need <u>some</u> books. مثال: موږ یوه اندازه کتابونو ته ضرورت لرو.

Ex: Do you have <u>some</u> water? مثال: آیا تاسي یوه اندازه اوبه لرئ؟

Ex: He doesn't have <u>any</u> books. مثال: هغه یوه اندازه کتابونه نه لري.

Ex: Do you have <u>any</u> pens? مثال: آیا ته یوه اندازه قلمونه لري؟

**یادونه**: "Many" له جمع شمېرونکي اسمونو سره په مثبته بیانیه، منفي بیانیه او سوالیه جملو کې استعمالېږي او "Much" له غیر شمېرونکي اسمونو سره په منفي بیانیه او سوالیه جملو کې استعمالېږي.

Ex: I do have <u>many</u> brothers. مثال: زه ډېر ورونه لرم.

Ex: He dosen't need <u>much</u> water. مثال: هغه ډېرو اوبو ته ضرورت نلري.

**یادونه**: "Few" له شمېرونکي اسمونو سره او "Little" له غیر شمېرونکي اسمونو سره استعمالېږي.

Ex: I have <u>little</u> water. مثال: زه لېږي اوبه لرم.

Ex: I have <u>few</u> friends. مثال: زه لېږ ملګري لرم.

## 3. Numeral Adjectives عددي صفتونه

Numeral Adectives show how many persons or things are meant or in which position or degree a person or thing stands.

عددي صفتونه ښيي "چې" څومره اشخاص یا شیان په "نظر کې" نیول شوي دي اویا "دا چې" یو شخص یا شی په کوم مقام یا درجه کې قرار لري.

| **Some Numeral Adjectives ځیني عددي صفتونه** | | | |
|---|---|---|---|
| One | یو | Two | دوه |
| First | لومړی | Secound | دوهم |
| Many | ډېر | A lot | زیات |
| Several | څو | | |

Ex: The mouth has <u>32</u> teeth. مثال: خوله <u>۳۲</u> غاښونه لري.

Ex: I have <u>two</u> books. مثال: زه <u>دوه</u> کتابونه لرم.

❖ **The Numeral Adjective are devided in to two parts:**
**عددي صفتونه په دوو برخو وېشل شوي دي:**

## 1. Definite Numeral Adjective معين عددي صفتونه

Definit numeral adjectives are those which show an exact number.
**معين عددي صفتونه هغه دي چې يو معين تعداد يا شمېر ښيي.**

**Like:** One, Two, First, Secound etc... لکه: يو، دوه، لومړی، دوهم او داسي نور...

⇨ **Definite Numeral Adjectives are of three parts:**
**معين عددي صفتونه په درې ډوله دي:**

### A. Cardinal Numbers. اصلي عددونه

Cardinal numbers show quantity or determine the numbers.
اصلي عددونه مقدار يا د اعدادو تعينول ښيي.

**Like**: One, Two,Three, Four etc… لکه: يو، دوه، دري، څلور اوداسي نور...

Ex: Ahmad has <u>four</u> brothers. مثال: احمد <u>څلور</u> ورونه لري.

### B. Ordinal Numbers. رتبه يي(توصيفي) عددونه

Ordinal Numbers show quality or the order of the things in a series.
رتبه يي عددونه کيفيت اويا په يوه سلسله کې د شيانو رتبه ښکاره کوي.

**Like**: First, Secound, Third, Fourth etc... لکه: لومړی، دوهم، دريم، څلورم او نور...

Ex: Najeeb has <u>first</u> position in the class.
مثال: نجيب په ټولګي کې <u>لومړی</u> مقام لري.

**Note:** The ordinals are formed by adding (th) at the end of cordinals, except first, second , third.

نوټ: رتبه يي "فعلونه" د اصلي عددونو په اخېر کې د (th) په زياتولو سره تشکيلېږی په استثنا د لومړي، دوهم، دريم.

Ex: Four<u>th</u>, Fif<u>th</u>, six<u>th</u>, ten<u>th</u> etc… مثال: څلورم، پنځم، شپږم، لسم اونور...

- Sometimes these numbers are written in contractions.

ځيني وخت دغه عددونه په مختصر شکل لیکل کېږي.

Ex: First = 1st (لومړی) Ex: Secound = 2nd (دوهم) Ex: Third = 3rd (دريم)

Ex: Twenty first = 21st (يويشتم)

### C. Multiplicative Numbers د تکثير(ډېروالي) عددونه

Multiplicative Numbers are those which show multiplication.

د تکثير عددونه هغه دي چې کثرت (ډېروالی) بيانوي.

Ex: Double, Dozen, Two fold, Three fold etc...

مثال: ډبل، درجن، دوه غبرگ، درې غبرگ او داسي نور...

## 2. Indefinite Nuumeral Adjectives نا معين عددي صفتونه

Indefinite Numeral adjectives show inexact numbers.

نامعين عددي صفتونه غير دقيق تعداد ښيي.

| **Some Indefinite Numeral Adjectives ځيني نا معين عددي صفتونه** | | | |
|---|---|---|---|
| Some | ځيني، يوه اندازه | Any | ځيني، يوه اندازه |
| No | هيڅ | Few | کم |
| Many | ډېر | Several | څو |

Ex: I bought <u>several</u> story books. مثال: ما د کیسو <u>څو</u> کتابونه واخېستل.

Ex: I has <u>many</u> friends. مثال: زه <u>ډېر</u> ملگري لرم.

## 4. Demonstrative Adjectives اشاري صفتونه

Demonstrative adjectives are those which are used before nouns and point out to a person, place, or thing.

اشاري صفتونه هغه دي چې له اسم څخه مخکي استعمالېږي او يو شخص، مکان اويا شي ته اشاره کوي.

| Demonstrative Adjectives are consist in: اشاري صفتونه عبارت دي له | | | |
|---|---|---|---|
| This | دغه | That | هغه |
| These | دغه «جمع» | Those | هغه «جمع» |
| Such | داسي، دارنگه | The same | عين شي |

Ex: <u>This</u> class is small. مثال: <u>دغه</u> ټولگی کوچنی دی.

Ex: <u>Those</u> books are mine. مثال: <u>هغه</u> کتابونه زما دی.

### ❖ Demonstrative Adjectives are of two kinds:

اشاري صفتونه په دوه ډوله دي:

**1) Definite Demonstrative Adjectives معين اشاري صفتونه**

**Like**: This, These, The etc...

**لکه**: (دغه)This, (هغه)That, («دغه«جمع»)These, The او داسي نور...

**2) Indefinite Demonstrative Adjectives نامعين اشاري صفتونه**

**Like:** A, An, That, Those etc...

**لکه:** (يو) A, An(يو), That ( هغه), Those(«هغه«جمع») اوداسي نور...

## 5. Possessive Adjectives ملکي صفتونه

Possessive adjectives are those which are used before noun and show possession and ownership.

ملکي صفتونه هغه دي چې له اسم څخه مخکي استعمالېږي او ملکيت او مالکيت ښکاره کوي.

| Possessive Adjectives are consist in: ملکي صفتونه عبارت دي له | | | |
|---|---|---|---|
| My | زما | Your | د تاسي، ستاسي |
| Our | زموږ | Their | د هغوي (د دوئ) |
| His | د هغه (مذکر) | Her | د هغې |
| Its | د هغه (بېجان) | | |

Ex: This is his car. مثال: دغه د هغه موټر دی.

Ex: That is our class. مثال: هغه زموږ ټولګی دی.

Ex: Muzamil is my brother. مثال: مزمل زما ورور دی.

## 6. Interrogative Adjectives پوښتونيز (استفهامي) صفتونه

Interrogative adjectives are used before nouns and ask a question.

پوښتنيز صفتونه له اسم څخه مخکي استعمالېږي او سوال پوښتي.

| Interrogative Adjectives are consist in: پوښتنيز صفتونه عبارت دي له | | | |
|---|---|---|---|
| What | څه، څه شي | Which | کوم، کوم شي |
| Whose | د چا | Who | څوک |

Ex: Which class are you in? مثال: تاسي په کوم ټولګی کې یاست؟

Ex: What is your favorite meal? مثال: د تاسي د خوښي غذا څه شي ده؟

Ex: Who is your close friend? مثال: د تاسي نږدې ملګري څوک دی؟

Ex: Whose picture is this? مثال: دغه تصوير د چا دی؟

نوټ: د Whose, Who, What او Which تعريفونه د پوښتنېزو ضميرونو په بحث شوي دي.

## 7. Proper Adjectives خاص صفتونه

Proper adjectives are those which are derived or teken from a proper noun .

خاص صفتونه هغه دي چې له خاص اسم څخه مشتق یا اخېستل شوي دي.

Ex: Afghanistan, Pakistan, Kandahar, U. E. A etc...

مثال: افغانستان، پاکستان، کندهار، امارات متحده عربي او داسي نور...

### ❖ The forming of proper adjectives د خاص صفتونو تشکېل

1) Adding (ish): Englind – Engl<u>ish</u> , Turkey – Turk<u>ish</u> .....etc.
2) Adding (n): America – American, India – India<u>n</u> ...... etc.
3) Adding (ese): China – Chin<u>ese</u>, Japan – Japan<u>ese</u> ..... etc.
4) Adding (ic) : Islam – Islam<u>ic</u> , Arabia – Arab<u>ic</u> ........etc.
5) Irregular forming : Greece – Greek, Egypt – Egyptian ...etc.

## 8. Distributive Adjectives توزیعي صفتونه

Distributive adjectives are used before nouns and indicate each person of a number or group.

توزیعي صفتونه له اسمونو څخه مخکي استعمالېږي او د یو ګروپ یا ډلې په هر شخص باندي دلالت کوي. (د یو ګروپ په فرد فرد باندي دلالت کوي).

| Some Distributive Adjectives ځیني توزیعي صفتونه | | | |
|---|---|---|---|
| Each | هر، هریو | Every | هر، هریو |
| Either | دواړه | Neither | هیڅ، هیڅ یو |

## Note: نوټ

1) **Each :** is used for small groups and when the number is limited and definite.

**Eaich**: د کوچني ګروپونو لپاره استعمالیږي هغه وخت چې تعداد یې محدود او معین وي.

Ex: Each man had a chance. مثال: هر سړی یو چانس درلود.

2) **Every** : is used for large groups and when the number is not limited.

**Every**: د غټو ګروپونو لپاره استعمالیږي هغه وخت چې تعداد یې نا محدود وي.

Ex: I have studied every book in this library.

مثال: ما په دغه کتابتون کې هر کتاب مطالعه کړې دی.

3) **Either:** shows the choice between two persons or things in positive sentence.

**Either**: په مثبته جمله کې د دوو اشخاصو یا شیانو ترمنځ انتخاب ښیي.

Ex: I can read either book. مثال: زه کولای شم دواړه کتابه ولولم.

4) **Neither :** is used for two persons or things in the negative sentences and agrees with singular verb.

**Neither**: په منفي جملو کې د دوو اشخاصو یا شیانو لپاره استعمالیږي او له مفرد فعل سره مطابقت کوي.

Ex: Neither book is mine. مثال: هیڅ یو کتاب زما ندی.

Ex: Neither student is lazy. مثال: هیڅ یو شاګرد تنبل ندی.

# Comparison of Adjectives
# د صفتونو مقايسه

The usual way for comprison of adjectives is using the positive comparative and superlative degree.

د صفتونو د مقايسې لپاره معمولي طريقه د مطلقې درجې، تفضيلي درجې او عالي درجې له استعمال څخه عبارت دی.

## 1) Positive degree مطلقه (ساده) درجه

The positive degree of an adjective is the simple form of an adjective, it is used when no comparison is meant.

د صفت مطلقه درجه د صفت له ساده شکل څخه عبارت ده ،"دغه" درجه هغه وخت استعمالېږي چې هيڅ مقايسه په نظر کې نه وي نيول شوې.

Ex: Nice, Clever, small, tall etc...

مثال: ښکلی، ځيرک، کوچني، اوږد يا جگ او داسې نور...

Ex: Hilmand has very <u>nice</u> views. مثال: هلمند ډېرې <u>ښکلې</u> منظرې لري.

Ex: Rafi is a <u>clever</u> student. مثال: رفيع يو <u>ځيرک</u> زده کوونکی دی.

## Note:نوټ

When the positive degree is used for comparison of two person or things it is usually placed between (as............. as); this form is called comparison of equality.

کله چې مطلقه درجه د دوو اشخاصو يا شيانو مقايسې لپاره استعمالېږي معمولاً (as ..........as) ځای نيسي ؛ دغه شکل د تساوي مقايسې په نوم يادېږي.

Ex: Moheeb is <u>as</u> tall <u>as</u> his brother. مثال: محيب د خپل ورور په څېر جگ دی.

**Note:** But in the negative form the first (as) is changed to (so).

**نوټ:** مګر په منفي شکل کې لومړی(as) په (so) باندي بدلېږي.

Ex: Shafiqa is not <u>so</u> pretty <u>as</u> her sister. مثال: شفیقه د خپلې خور په څېر ښکلې نده.

## 2) Comparative degree تفضیلي درجه

The comparative degree of an adjective indicates the higher degree of quality than positive, it is used when we compare two persons, places or things .

د صفت تفضیلي درجه نسبت مطلقي درجې ته په عالي تره کیفیت دلالت کوي، "دغه" درجه هغه وخت استعمالېږي چې زمونږ دوه اشخاصه، مکانونه اویا شیان سره مقایسه کوو.

Ex: Nicer, Cleverer, Smaller, Taller etc…

مثال: ښایسته تر، لایقتر، کوچنی تر، اوږد تر او داسي نور...

Ex: Jamil is <u>cleverer</u> than Naqib. مثال: جمیل له نقیب څخه <u>لایقتر</u> دی.

### Note: نوټ

The preposition (than) is usually used in the comparative degree to introduce the second part of comparison.

د (than) اضافي توری په تفضیلي درجه کې استعمالېږي ترڅو د مقایسې دوهمه برخه معرفي کړي.

Ex: Kabul is nicer <u>than</u> Ghazni. مثال: کابل <u>نسبت</u> غزنی ته ډېر ښکلی دی.

### Note: نوټ

Another way for comparison is using (less, more, most, like, alike etc).

د مقایسي یوه بله لاره د (less, more, most, like, alike او داسي نورو) استعمال دی.

Ex: Ahmad is <u>less</u> strong than Rahim. مثال: احمد له رحیم څخه کمزوري دی.

## Note: نوټ

Sometimes in the comparative degree, we do not actually name the second part of comparison.

ځيني وخت په تفضيلي درجه کې، موږ د مقايسې په دوهمه برخه عملاً نوم نه ذکر کوو.

Ex: Physics is more difficult than any other subject.

مثال: فزيک له بل هر مضمون څخه ډېر مشکل دی.

Ex: Wahid is taller than any other boy. مثال: وحيد له بل هر هلک څخه لوړ تر دی.

## Note:نوټ

Sometimes the qualities of two persons are clear, we use article (the) before comparative degree.

ځيني وخت د دوو اشخاصو مقايسه واضح وي، موږ د تفضيلي درجې مخکې د (The) د تعريف توری استعمالوو.

Ex: Najeeb is <u>the</u> cleverer of <u>the</u> two brothers.

مثال: نجيب له دواړو ورونو څخه لايقتر دی.

## 3) Superlative degree عالي درجه

The superlative degree of an adjective denotes the highest degree of quality, It is used when more than two persons or things are compared.

د صفت عالي درجه د کيفيت په عالي ترينه درجه دلالت کوي، دغه "مقايسوي درجه" هغه وخت استعمالېږي چې له دوو څخه زيات اشخاص اويا شيان سره مقايسه کېږي.

Ex: Nicest, Cleverest, Smallest etc...

مثال: ښايسته ترين، لايقترين، کوچني ترين اوداسي نور...

Ex: Bilal is the <u>cleverest</u> student in the class.

مثال: بلال په ټولګي کې <u>لايقترين</u> زده کوونکی دی.

**Note: نوټ**

Article (the) is usually used before the superlative degree of an adjective.

د (the) تعریف توري معمولاً د صفت له عالي درجي څخه مخکي استعمالیږی.

- **Foramtion of comparative and Superlative degrees:**
**د تفضیلي او عالي درجو د تشکیلېدو طریقه:**

The usual way to form the comparative and superlative degree adding ( er, est, more, most) with the positive degree.

د تفضیلي او عالي درجو د تشکیلېدو معمولي طریقه د (er, est, more, most) زیاتول دي له مطلقي (ساده) درجې سره.

Ex: Small – Smaller – Smallest. مثال: کوچنی ـ کوچنی تر ـ کوچنی ترین.

# Rules: قاعدې

**1)** One syllable adjectives take (er) in the comperative and (est) in the superlative forms.

یو هجایي صفت په تفضیلي شکل کي (er) او په عالي شکل کي (est) اختیاروي.

| **Positive degree** مطلقه(ساده) درجه | **Comparative degree** تفضیلي درجه | **Superlative degree** عالي درجه |
|---|---|---|
| Short لنډ | Shorter لنډ تر | Shortest لنډ ترین |
| Tall لوړ | Taller لوړ تر | Tallest لوړ ترین |
| Thick پنډ | Thicker پنډ تر | Thickest پنډ ترین |
| Sad پرېشان | Sader پرېشان تر | Sadest پرېشان ترین |

**Note: نوټ**

When adjectives end in (e) only take (r) in the comparative and (st) in the superlative forms .

کله چې صفتونه په (e) ختم شي په تفضيلي شکل يوازي (r) او په عالي شکل کې (st) اختياروي

| Positive degree مطلقه(ساده) درجه | Comparative degree تفضيلي درجه | Superlative degree عالي درجه |
|---|---|---|
| Fine نرم | Fine<u>r</u> نرم تر | Fine<u>st</u> نرم ترين |
| Brave زړه ور | Brave<u>r</u> زړه ور تر | Brave<u>st</u> زړه ور ترين |
| Wise معقول | Wise<u>r</u> معقول تر | Wise<u>st</u> معقول ترين |

**2)** Two syllable adjectives ending in (er, ow, le, y) take (er) in the comparative and (est) in the superlative forms.

دوه هجايي صفتونه چې په (er, ow, le, y) ختم شوي وي په تفضيلي شکل کې (er) په عالي شکل کې (est) اختياروي.

| Positive degree مطلقه(ساده) درجه | Comparative degree تفضيلي درجه | Superlative degree عالي درجه |
|---|---|---|
| Clever لايق | Clever<u>er</u> لايقتر | Clever<u>est</u> لايقترين |
| Happy خوشحال | Happi<u>er</u> خوشحال تر | Happi<u>est</u> خوشحال ترين |
| Noble شريف | Nobl<u>er</u> شريف تر | Nobl<u>est</u> شريف ترين |

**3)** More than two syllable adjectives always form their comparative and superlative by taking (more) and (most) before the positive degree.

له دوو څخه زيات هجايي صفتونه پخپلو تفضيلي او عالي درجو کې د (more) او(most) په زياتولو سره د ساده شکل څخه مخکي تشکيلېږي.

| Positive degree<br>مطلقه(ساده) درجه | Comparative degree<br>تفضيلي درجه | Superlative degree<br>عالي درجه |
|---|---|---|
| Intelligent هوښيار | More intelligent هوښيار تر | Most intelligent هوښيار ترين |
| Beutiful ښايسته | More beutiful ښايسته تر | Most beutiful ښايسته ترين |

## Note: نوټ

(Most + Simple form of adjective) without article (the) means very much.

Most د صفت له ساده شکل سره د (the) تعريف توري څخه پرته د ډېر مانا ورکوي.

Ex: Noor Aamad is <u>most</u> intelligent boy. مثال: نوراحمد ډېر هوښيار هلک دی.

### Memory: يادابښت

The other ways for comparison of adjectives in English language is using (Like, a lik) and (less, least).

د صفتونو د مقايسې بله طريقه په انګليسی ژبه کې د (like, a like) او (less, least) استعمالوه نه ده.

Ex: Hayat runs <u>like</u> deer. مثال: حيات د هوسۍ په <u>څېر</u> منډې وهي.

Ex: Ahmad is <u>less</u> talented than Saleem. مثال: احمد له سليم څخه <u>ډېر کم</u> استعداده دی.

**Note:** Some of the adectives are compared irregularly.

نوټ: ځيني صفتونه په بې قاعده ډول مقايسه کېږي.

| Positive degree<br>مطلقه(ساده) درجه | | Comparative degree<br>تفضيلي درجه | | Superlative degree<br>عالي درجه | |
|---|---|---|---|---|---|
| Good | ښه | Better | ښه تر، بهتر | Best | ښه ترين، بهترين |
| Bad | بد | Worse | بد تر | Worst | بد ترين |
| Little | کم | Less | کمتر | Leas | کمترين |
| Much | زيات | More | زيات تر | Most | زيات ترين |
| Far | ليري | Farther / Furthe | ليري تر | Farthest / Furthest | ليري ترين |
| Old | بوډا | Older / elder | بوډا تر | Oldest / eldest | بوډا ترين |

**نوټ**: (Farther) یوازې د فاصلې لپاره استعمالېږي مگر (Further) د ډېرو ځایونو لپاره استعمالېږي.

**نوټ**: (Older) ډېر استعمال لري مگر (elder) محدود تر استعمال لري او معمولاً د کورنۍ د لوی غړو لپاره استعمالېږی او همدارنگه (elder) د (than) اضافي توري سره نه استعمالیږي.

# Adverbs قیدونه

Adverb is a word which is used to add something to the meaning of a verb, an adjective or another adverb.

قید هغه کلیمه ده چې د **فعل**، صفت اویا **بل** قید په مانا یو شی اضافه کوي.

**Or**: Adverb is a word which modifies the meaning of a verb , an adjective or another adverb.

اویا: قید هغه کلیمه ده چې د **فعل**، صفت اویا **بل** قید مانا معینوي (بهتره کوي).

Ex: Ahmad runs fast. (verb). مثال: احمد تېز ځغلي. (فعل).

Ex:He spoke quite correctly. (adverb). مثال: هغه کاملاً په صحیح ډول خبري وکړي. (قید).

Ex: The Afghans are very hospitable.(adjective). مثال: افغانان ډېر مېلمه پال دي. (صفت).

# Kinds of Adverbs
# د قید ډولونه

**Adverbs are mainaly divided into three parts:**

قیدونه اساساً په دري برخو وېشل شوي دي:

1. **Simple adverbs** ساده قیدونه
2. **Interrogative adverbs** پوښتنېز(استفهامي) قیدونه
3. **Relative adverbs** ربطي قیدونه

## 1. Simple Adverbs ساده قیدونه

Simple adverbs are extensively used in the daily activities.
ساده قیدونه په زیاته توګه په ورځني فعالیتونو کې استعمالېږي.

**The simple adverbs are devided into eight parts:**
**ساده قیدونه په اتو برخو وېشل شوي دي:**

### 1) Adverbs of manner: د حالت یا څرنګوالي قیدونه

These adverbs show how an action is done.
دغه قیدونه ښیي چي یو عمل څنګه سرته رسېږي.

| **Some adverbs of manner** د څرنګوالي ځیني قیدونه | | | |
|---|---|---|---|
| Fast | تېز | Hard | سخت |
| Slowly | آهسته | Bravely | په زړه وره توګه |
| Clearly | واضحاً، په واضح ډول | Probably | احتمالاً، په احتمالي ډول |

Ex: Asad speaks slowly. مثال: آسد آهسته خبري کوي.

Ex: Ajmal lived happily. مثال: اجمل په خوشحاله ډول ژوند تېروي.

### Note: نوټ

Adverbs of manner only modify verbs and are normally used after the verbs, but they can have end position.
د څرنګوالي قیدونه یوازي فعلونه معینوي او عموماً له فعلونو څخه وروسته استعمالېږي، مګر کېدای شي په اخېر کې "هم" کېدای شي موقعیت اختیار کړي.

Ex: Asif speaks politely. مثال: آصف مادبانه خبري کوي.

Ex: The doctor examined the patient carefully. مثال: ډاکتر په دقت سره ناروغ معاینه کړ.

## 2) Adverbs of time: د وخت قیدونه

These adverbs show when an action happened.

دغه قیدونه ښيي چې یو عمل څه وخت واقع شوي ده.

**Like:** Now, yesterday, tomorrow etc....

لکه: اوس، تېره ورځ، سبا او داسې نور...

Ex: We will come here <u>tomorrow</u>. مثال: موږ به <u>سبا</u> دلته راشو.

➢ **Adverbs of time are devided into two parts:**

د وخت قیدونه په دوو برخو وېشل شوي دي:

**A. Definite adverbs of time** د وخت معین قیدونه

These adverbs show exact time. دغه قیدونه معین وخت ښيي.

Ex: I wrote a letter <u>at five o'clock last night</u>.

مثال: <u>ما تېره شپه په پنځه بجې</u> یوه رساله ولیکله.

**B. Indefinite adverbs of time** د وخت نامعین قیدونه

These adverbs show inexact time. دغه قیدونه نامعین وخت ښيي.

**Like**: Already, ago, early etc… لکه: مخکې، پخوا، وختي او داسې نور...

Ex: I see him <u>many times</u>. مثال: زه هغه <u>ډېر ځلې</u> وینم.

## 3) Adverbs of place: د مکان قیدونه

These show where an action happened.

دغه قیدونه ښيي چې یو عمل چېرې واقع شوی دی.

**Like**: Here, there, up, down, inside, outside etc...

لکه: دلته، هلته، پورته، کښته، په داخل کې، دباندې او داسې نور...

Ex: Jamal came <u>here</u> yesterday. مثال: جمال تېره ورځ <u>دلته</u> راغی.

## 4) Adverbs of reason: د علت یا نتیجي قیدونه

These adverbs show why an action happened.
دغه قیدونه ښيي چې ولي یو عمل واقع شوی دی.

**Like:** So, Therefore, Because etc... لکه: نو، د دې لپاره، ځکه او داسې نور...

Ex: Sadiq succeeded in the exam because he studied hard.
مثال: صادق په امتحان کي کامیاب شو ځکه هغه پراخه مطالعه وکړه.

## 5) Adverbs of Affirmation and negation: د تاید او انکار قیدونه

These adverbs show agreement or disagreement with speaker.
دغه قیدونه له ویونکي سره موافقیت او یا مخالفت ښیي.

**Like**: No (نه), Of course (البته), May be (ممکن), Sure (یقیناً), Yes (هو) ,Surely (بېشکه), Probably (گوندی) etc...

Ex: Can you speak French? Yes I can.
مثال: آیا ته په فرانسوي خبري کولای شي؟ هو زه يي کولای شم.

Ex: Do you know him? No, I do not. مثال: آیا ته هغه پېژني؟ نه، نه يې پېژنم.

## 6) Emphatic adverbs. تأکیدي قیدونه

These adverbs show emphasis on an action.
دغه قیدونه د یو عمل په "سرته رسولو" تاکید ښیي.

**Like:** Just (فقط), Even (حتی، هم), Too (هم) etc...

Ex: He even smokes cigarette now. مثال: هغه حتی اوس هم سگرېټ څکوي.

## 7) Nameral Adverbs عددي قیدونه

Adverbs of number are used to show how often an action happened.

عددي قیدونه د یو عمل "سرته رسول" ښیي چې څو ځله واقع شوی دی.

**Like:** Once, Twice, Three times etc…

**لکه** : یو ځلي، دوه ځلي، درې ځلي او داسي نور...

Ex: I have seen Kandahar twice. مثال: ما دوه ځلي کندهار لېدلی دی.

- **Numeral adverbs are divided into two parts:**

**عددي قیدونه په دوه برخو وېشل شوي دي:**

### a) Definit numeral adverbs: معین عددي قیدونه

These adverbs show exact number. دغه قیدونه معین تعداد ښیي.

**Like**: Once (یو ځلي), Twice (دوه ځلي), Firistly (اولاً), Secondly (دوهم وار) etc…

Ex: He tried twice. مثال: هغه دوه ځلی کوښښ وکړ.

Ex: I have gone to Mazar once. مثال: زه یو ځل مزار ته تللی یم.

### b) Indefinite numeral adverbs: نامعین عددي قیدونه

These adverbs show inexact number. دغه قیدونه نامعین تعداد ښیي.

**Like :** Sometimes (ځیني وختونه), Often (اکثراً وخت), Usually (معمولاً) , Always (همېشه), Several times (څو ځلي), Seldom(کله کله), Rarely(کله کله) etc...

Ex: Ghulam Riza often goes to Kandahar. مثال: غلام رضاء اکثره وخت کندهار ته ځي.

## 8) Adverbs of Degree and Quantity: د درجې او مقدار قیدونه

These adverbs show in what degree an action is done.
دغه قیدونه ښیي چې یو عمل په کومه درجه سرته رسیږي.

**Like:** Very (ډېر), Quite (کاملاً), Too (زیات), Enough (کافي), Much (ډېر) etc...

Ex: Ghulam Riza runs very fast. مثال: غلام رضا ډېر تېز ځغلي.

## 2. Interrogative Adverbs: پوښتنیز (استفهامي) قیدونه

The interrogative adverbs are used to ask question.
پوښتنیز قیدونه د سوال د تپوسني لپاره استعمالیږي.

| Interrogative Adverbs پوښتنیز قیدونه | | | |
|---|---|---|---|
| Why | ولې | Where | چېرې، چېرته |
| When | کله، څه وخت | How long | څومره وخت |
| How often | اکثراً څومره | | |

Ex: Where are you living? مثال: تاسې چېرې ژوند کوئ؟

Ex: How often does he play chess? مثال: هغه اکثراً څومره د سطرنج لوبه کوي؟

Ex: How long will you continue this class? مثال: تاسې به څومره وخت دغه ټولګی ته ادامه ورکړئ؟

## 3. Relative Adverbs ربطي قیدونه

The relative adverbs are used to join two sentences.
ربطي قیدونه د دوو جملو د نښلولو لپاره استعمالیږي.

| Relative Adverbs ربطي قیدونه | | | |
|---|---|---|---|
| Why | ولې | Where | چېرې، چېرته |
| When | کله، څه وخت | How | څومره |
| How often | اکثره څومره | If | که چېرې |

# Formation of Adverbs
# د قیدونو جوړونه

Most of the advebs are formed by (ly) at the end of adjectives.
ډیر قیدونه د صفت په اخیر کې د (ly) په واسطه جوړیږي.

**Like:** Perfect – Perfectly (کامل ـ کاملاً), Quick – Quickly (تېز ـ په تېزي سره)

## Rules: قاعدې

**1)** Adjectives ending in (y) change (y) into (I) and add (ly).
هغه صفتونه چې په (y) ختم شوي وي (y) په (I) بدلیږي او (ly)علاوه کیږي.

Ex: Happy – Happily. مثال: خوشحال ـ په خوشحالي سره.

Ex: Heavy – Heavily. مثال: سخت ـ په سختۍ سره.

**2)** Adjectives ending in (ible) and (able) drop (e) and add (y).
هغه صفتونه چې په (ible) او (able) ختم وي (e) له منځه ځي او (y) علاوه کیږي.

Ex: Capable – Capably. مثال: وړ ـ په وړتوب سره.

Ex: Possible – Possibly. مثال: ممکن ـ احتمالاً.

**3)** Adjectives ending in (e) take (ly) without any change.
هغه صفتونه چې په (e) ختم وي بې له کوم تغیر څخه (ly) اختیاروي.

Ex: Polite – Poliely. مثال: مادب ـ مادبانه.

Ex: Mere – Merely. مثال: صرف ـ صرفاً.

## Exceptions: استثناوي

**Like**: Due – Duly. (نتیجه ـ په نتیجه کې), Whole – Wholly. (کامل ـ کاملاً)

True – Truly. (حقیقت ـ حقیقتاً)

**4)** Adjectives ending in a single (l) take (ly) but adjectives ending in (ll) take only (y).

هغه صفتونه چې په (l) ختم وي (ly) اختیاروي مگر هغه صفتونه چې په (ll) ختم وی یوازي (y) اختیاروي.

Ex: Careful – Carfully. مثال: دقت ـ په دقت سره.

Ex: Dull – Dully. مثال: خسته ـ په خستگی سره.

**Note: نوټ**

Some adjectives and adverbs have the same form,

ځيني صفتونه او قيدونه عين شکل لري.

**Like**: Early (وختي، په وخت سره), Deep (ژور، په ژوروالي سره), Fast (تېز، په تېزي سره) Low (کښته، په کښته والي سره), Far (لري، په لري والي سره), High (لوړ، په لوړوالي سره) Hard (سخت، په سختۍ سره) etc…

Ex: Corolla is a fast car.(adjective). مثال: کورولا يو تېز موټر دی. (صفت).

Ex: Asad runs fast. (adverb). مثال: آسد په تېزي سره ځغلي. (قيد).

**5)** Some adjectives are combined with (a) , (be) and (to) and form adverb.

ځيني صفتونه د (a) ، (be) او (to) په مختاړي سره ترکيببږي.

Ex: Broad – Abroad مثال: پلن ـ په پلنوالي سره .

Ex: Live – Alive. مثال: ژوندي ـ په ژوندي توب سره.

Ex: Head – Ahead. مثال: ابتداء ـ په ابتداء سره.

# Comparision of Adverbs
# د قیدونو مقایسه

Many of the adverbs are compared as adjectives and have three degrees of comparison.

ډېر قیدونه عیناً د صفتونو په څېر مقایسه کېږي او د مقایسې درې درجې لري.

**1)** One syllable adverbs form their comparative by adding (er) and the superlative by (est).

یو هجایي قیدونه پخپل تفضیلي شکل کې د (er) او په عالي "شکل" کې د (est) په په اضافه کولو تشکیلېږي.

| Positive degree<br>ساده (درجه) | Comparative degree<br>تفضیلي درجه | Superlative degree<br>عالي درجه |
|---|---|---|
| Fast په تېزي سره | Faster په ډېر تېزي سره | Fastest په ډېر زیات تېزي سره |
| Hard په سختۍ سره | Harder په ډېر سختۍ سره | Hardest په ډېر زیات سختۍ سره |
| Soon ژر | Sooner ډېر ژر | Soonest ډېر زیات ژر |

**2)** Two or more than two syllable adverbs take (more) in the comparative and (most) in the superlative forms.

دوه یا له دوو څخه زیات هجاء "لرونکي" قیدونه په تفضیلي شکل کې (more) او په عالي شکل کې (most) اختیاروي.

| Positive degree<br>ساده درجه | Comparative degree<br>تفضیلي درجه | Superlative degree<br>عالي درجه |
|---|---|---|
| Quickly په چابکي سره | More quickly په ډېر چابکي سره | Most quickly په ډېر زیات چابکي سره |
| Bavely په زړه ورتوب سره | More bravely په ډېر زړه ورتوب سره | Most bravel په ډېر زیات زړه ورتو ب سر |

**3)** Some of the adverbs are formed irregularly.
ځيني قيدونه په بې قاعده ډول تشکيلېږي.

| Positive degree<br>ساده درجه | | Comparative degree<br>تفضيلي درجه | | Superlative degree<br>عالي درجه | |
|---|---|---|---|---|---|
| Well | په ښه والي سره | Better | په ډېر ښه والي سره | Best | په ډېر زيات ښه والي سره |
| Little | په ليږوالي سره | Less | په ډېر ليږوالي سره | Least | په ډېر زيات ليږوال ي سره |

- **The correct uses of some adverbs:** د ځيني قيدونو دقيق استعمالات

## 1. "Good": ښـه

"Good" is an adjective which shows condition and modifies nouns.
"Good" هغه صفت ده چې د کيفيت يا حالت او د اسمونو ستاينه بيانوي.

Ex: Ahsan is a <u>good</u> student. مثال: احسان ي‌و <u>ښه</u> زده کوونکي دی.

## 2. "Well": ښـه

"Well" is an adverb which expresses good health and modifies verbs.
"Well" هغه قيده دی چې ښه صحت او د فعلونو ستاينه بيانوي.

Ex: Ahmad always feels <u>well</u>. مثال: احمد هر وخت <u>ښه</u> احساس کوي.

## 3. "Enough": کـافـي، بـس

"Enough" is an adverb which is used after adjective or adverb, and is sometimes as adjective, is used before nouns.
"Enough" هغه قيد دی چې له صفت يا قيد څخه وروسته استعمالېږي، او ځيني وخت د صفت په حيث له اسمونو څخه مخکي استعمالېږي.

Ex: I have <u>enough</u> time to stay here. مثال: زه دلته د پاتي کېدو لپاره <u>کافي</u> وخت لرم.

## 4. “Very”: ډېر

“Very” is an adverb which is used before adjectives and other adverbs to show degree.

“Very” هغه قید دی چې له صفتونو او نورو قیدونو څخه مخکې استعمالیږي او درجه ښیي.

Ex: This hous is <u>very</u> large. مثال: دغه کور <u>ډېر</u> غټ دی.

## 5. “Much”: ډېر، زیات

“Much” is both adverb and adjective which shows amount or quantity , it can be also used before comparative degree.

“Much” هم قید دی هم صفت چې مقدار او اندازه بیانوي، او همدارنګه کېدای شي له تفضیلي څخه مخکې استعمال شي.

Ex: This hous is <u>much</u> large than that hous.

مثال: دغه کور له هغه کورڅخه <u>ډېر</u> لوی دی.

## 6. “Still”: لا تراوسه، تراوسه

“Still” is used for a period of time that continued from the past to present, and it is used in declarative (affirmative, negative and question) sentences.

“Still” د وخت د دوران لپاره پکار وړل کېږي چې له ماضي څخه تراوسه ادامه لری،او دغه "قید" په خبري (مثبت، منفي او سوالي) جملو کې استعمالېږي.

Ex: Are you <u>still</u> working now? مثال: آیا ته <u>تراوسه</u> پوري په کار مصروف یې؟

Ex: It is <u>still</u> raining. مثال: <u>تراوسه</u> پوري باران وربېږي

## 7. "Yet": لاتراوسه، تراوسه

"Yet" is used to show duration from present to future. It is used in question and negative statement sentences.

"Yet"د جریان لپاره له حال څخه تر راتلوونکي پوري استعمالېږي. دغه قید په سواليه او منفي بيانيه جملو کې استعمالېږي.

Ex: Abdul Hadi has not yet completed the work.

مثال: عبدالهادي تراوسه کار نده تکميل کړي.

Ex: Is the lunch ready yet ?

مثال: آيا تراوسه د غرمې ډوډۍ اماده ده ؟

## 8. "Already": مخکې، پخوا

"Already" is used to say that something is in the present or past but not the future.

"Already" د يو شي د موجوديت لپاره په حال يا ماضي کي استعمالېږي مگر په په راتلوونکي کې نه "استعمالېږي".

Ex: I have already gone to Pakistan.

مثال: زه پخوا پاکستان ته تللی یم.

## 9. "Either": هدارنگه، هم

"Either" means (too or also) it is used in negative sentences the adverbs like (as well ), (also), (too) are change to (either).

"Either" د (هم، همدارنگه) مانا ورکوي په منفي جملو کې قيدونه لکه (as well )، (too), (also) په (either) باندي بدلېږي.

Ex: He is not a teacher either.

مثال: هغه هم معلم ندی.

## 10. "Too": هم، همدارنګه

"Too" is used at the end of the sentences.

"Too" د جملو په اخير کې استعمالېږی.

Ex: He will fail in exam <u>too</u>. مثال: هغه به <u>هم</u> په امتحان کې ناکام شي.

## 11. "Also": هم، همدارنګه

"Also" is usually used at the middle and at the end of the sentences.

"Also" معمولاً د جملو په منځ او اخير کې استعمالېږي.

Ex: Sabir is a doctor <u>also</u>. مثال: صابر <u>هم</u> یو ډاکتر دی.

Ex: Sabir is <u>also</u> a doctor. مثال: صابر <u>هم</u> یو ډاکتر دی.

## 12. "Fairly": نسبتاً، په مناسبه توګه، په متوسط ډول

"Fairly" is used to express a positive meaning.

"Fairly" د مثبت مفهوم د بیانولو لپاره استعمالېږي.

Ex: This water is <u>fairly</u> hot. مثال: دغه اوبه <u>نسبتاً</u> ګرمي دي.

## 13. "Rather": له حده زیات، نسبتاً، تر یوه اندازه

"Rather" is used to express a negative idea and discofort.

"Rather" د منفي مفکورې او نا ارامتیا لپاره استعمالېږي.

Ex: This water is <u>rather</u> hot. مثال: دغه اوبه <u>له حده زیاتي</u> ګرمي دي.

## 14. "Only": فقط، یوازې

"Only" is used before the words and it modifies.

"Only" له کلمو څخه مخکې استعمالېږي او هغه معینوي.

Ex: He <u>only</u> fixed the car. مثال: هغه <u>فقط</u> موټر ترمیم کړ.

# Future perfect tense
# راتلوونکې کامله زمانه

| Helping verbs of F. P tense | د راتلونکې کاملې زمانې کومکي فعلونه |
|---|---|
| Will have / Shall have | Will have / Shall have |

**Structure: ساختمان**

| | |
|---|---|
| **Affirmative form** **مثبت شکل** | Sub + Will /Shall + Have + $V_3$ + Comp.<br>Ex: I will have finished the work. مثال: ما به کار ختم کړی وي. |
| **Question form** **سواليه شکل** | Will /Shall + Sub + Have + $V_3$ + Comp?<br>Ex: Will I have finished the work? مثال: آيا ما به کار ختم کړی وي؟ |
| **Negative form** **منفي شکل** | Sub + Will /Shall + Not + Have + $V_3$ + Comp .<br>Ex: I will not have finished the work. مثال: ما به کار ختم کړی نه وي. |
| **Negative interrogative Form** **منفي سواليه شکل** | Will /Shall +Sub + Not + Have + $V_3$ + Comp -?<br>Ex: Will I not have finished the work? مثال: آيا ما به کار ختم کړي نه وي؟<br>Won't/Shan't + Sub + Have + $V_3$ + Comp -?<br>Ex: Won't I have finished the work? مثال: آيا ما به کار ختم کړي نه وي؟ |

**1) Usage:** Future prefect tense is used to show an action which will have been completed before some specified time or before another action in the future.

۱) **استعمال:** راتلوونکې کامله زمانه د هغه عمل د بيانولو لپاره استعمالېږي چې په راتلوونکې کې به له معين وخت څخه مخکې اويا له بل عمل څخه مخکې تکميل شي.

Ex: They will have eaten food before we arrive home.
مثال: زموږ له را رسېدو څخه مخکې به دوی ډوډی خوړلې وي.

Ex: I will have prepared every thing when you arrive home.
مثال: تر هغه وخت چې تاسې بيرته کورته راګرځئ ما به ټول شيان چمتو کړي وي.

**2) Usage:** Future perfect tense is used to show an action that will be completed at some unspecified time in the future.

۱) **استعمال**: راتلوونکي کامله زمانه د هغه عمل د بیان لپاره استعمالېږي چې په راتلوونکي کې به په یو نا معین وخت کې تکمیل شوي وي.

Ex: We will have completed the homework 7:00 in the morning.

مثال: موږ به تر ۷:۰۰ بجو پوري کورنۍ کار ختم کړي وي.

Ex: Ahmad will have started the work by next April.

مثال: احمد به تر راتلوونکي آپریل پوري کار ختم کړي وي.

# Future perfect continuous tense
# راتلوونکې کامله جاري زمانه

| **Helping verbs of F. P tense** | د حال کاملي زمان کومکي فعلونه |
|---|---|
| Will have been / Shall have been | Will have been / Shall have been |

**Structure: ساختمان**

| | |
|---|---|
| **Affirmative form**<br>**مثبت شکل** | Sub + Will /Shall + Have + been + V-ing + Comp.<br>Ex: Ali will have been playing chess. مثال: علي به د سطرنج په لوبه بوخت وي. |
| **Question form**<br>**سواليه شکل** | Will /Shall + Sub + Have + been + V-ing + Comp?<br>Ex: Will Ali have been playing chess? مثال: آیا علي به د سطرنج په لوبه بوخت وي؟ |
| **Negative form**<br>**منفي شکل** | Sub + Will /Shall + Not + Have + been + V-ing + Comp.<br>Ex: Ali will not have been playing chess. مثال: علي به د سطرنج په لوبه بوخت نه وي. |
| **Negative interrogative Form**<br>**منفي سواليه شکل** | Will/Shall + Sub + Not + Have + been + V-ing+Comp -?<br>Ex: Will Ali not have been playing chess? مثال: آیا علي به د سطرنج په لوبه بوخت نه وي؟<br>Won't/Shan't + Sub + Have + been + V-ing + Comp -?<br>Ex: Won't Ali have been playing chess? مثال: آیا علي به د سطرنج په لوبه بوخت نه وي؟ |

**1) Usage:** The future perfect continuous tense is used to show the dura-tion of an action which will be continuing before some specified time or before another action in the future.

۱) **استعمال**: راتلوونکي کامله جاري زمانه د هغه عمل د جريان د ښودلو لپاره استعمالېږي چې په راتلوونکي کې به له معين وخت څخه مخکې او يا له بل عمل څخه مخکې د دوام په حالت کی وی.

**Diagram:**




Ex: They will have been reading since night.
مثال: هغوی به له شپې راپدې خوا په لوستلو مشغول وي.

Ex: I will have been sleeping for two hours by the time he gets home.
مثال: څو چې هغه کورته راځي ما به د دوو ساعتو لپاره خوب کړی وي.

Ex: You will have been playing volleyball with us for two hours tomorrow.
مثال: تاسي به سبا له موږ سره د دوو ساعتو لپاره د واليبال په لوبه مشغول ياست.

# Clause
# قضیه، شرط، فرض

A group of words which has subject and predicate and forms part of a sentence is called clause.

هغه‌گروپ د کلیمو چې د مبتدا او خبر لرونکي وي او د جملې یوه برخه جوړه کړي د قضیې په نوم یادېږي.

Ex: That he was fine. مثال: چې هغه ښه وو.

Ex: Why I came here. مثال: زه ولي دلته راغلم.

Ex: Which I bought last year. مثال: چې ما تېر کال واخېست.

But if we add another sentence with each of them, then they can make a complete sense.

مگر که چېري یوه بله جمله له هغوی هر یو سره اضافه کړو، په هغه وخت کې به بیا کامل مفهوم افاده کړی.

Ex: <u>Ahmad said</u> that he was fine. مثال: <u>احمد وویل</u> چې هغه ښه وو.

Ex: <u>This is the car</u> which I bought last year. مثال: <u>دغه موټر دی</u> چې ما تېر کال واخیست.

The sentences which support them are called principal and the others are subordinating clauses.

هغه جملې چې د قضیې حمایت کوي د اصلي قضیې او نوري د فرعي قضیو په نوم یادېږي.

## 1) Principle (Independent) clause: اصلي (مستقله) قضیه

The part sentence which makes complete meaning is called principal clause.

د جملې هغه برخه چې کامله مانا افاده کړي د اصلي قضیې په نوم یادېږي.

Ex: This is a student. مثال: دغه یو زده کوونکی دی.

Ex: That is a play. مثال: هغه یوه لوبه دی.

## 2) (Dependent) clause: فرعي (غیرمستقله) قضیه

The part of the sentence which does not express a complete meaning and can not stand alone is called subordinating clause.

د جملې هغه برخه چې مانا بیان نکړي او په تنهایي سره "مفهوم" ورنکړي د فرعي قضیې په نوم یادېږي.

Ex: That he likes very much.

مثال: چې هغه ډېر زیات خوښوي.

## Note: نوټ

The sprincipal and subordinating clause are connected by conjunct -tion such as ;( who, whom, whose, which, that, what, when, where) etc...

اصلي او فرعي قضیې د ربطي توري په واسطه لکه (what, that, which, whose, whom, who when,) او داسې نورو... سره وصلیږي.

- **The clauses are divided into three parts:**

قضیې په دریو برخو وېشل شوي دي:

**1)** Noun Clause. اسمي قضیه

**2)** Adjective Clause. صفتي قضیه

**3)** Adverb Clause. قیدي قضیه

## 1) Noun Clause اسمي قضیه

A group of words which has subject and predicate of its own and does the work of a noun is called noun clause.

هغه ګروپ د کلیمو چې د مبتدا او خبر لرونکي وي او د اسم کار ترسره کړي د اسمي قضیي په نوم یادېږي.

Ex: Naim said <u>that he would buy a new car</u>.

مثال: نعیم وویل <u>چې هغه یو نوی موټر اخیست</u>.

Ex: What he says is not logical.

مثال: څه شي چې هغه وايي منطقي نده.

Ex: Ali mentioned that he passed the exam successfully.

مثال: علي ذکر کړه چې امتحان يې په بريالۍ توګه ترسره کړ.

## 2) Adjective Clause: وصفي قضيه

A group of words which has subject and predicate of its and does the work of an adjective is called adjective clause.

هغه ګروپ د کليمو چې د مبتدا او خبر لرونکي وي او د صفت کار ترسره کړي د وصفي قضيې په نوم يادېږي.

Ex: Karrim is a boy who can speak Pashto well.

مثال: کريم هغه هلک دی چې په کولاي شي په پښتو ښه خبري وکړي.

Ex: He is the student who won the race.

مثال: هغه زده کوونکي ده چې د مسابقي وړونکی شو.

Ex: This is the book which I want to present it to you.

مثال: دغه کتاب دی چې غواړم هغه تاته ډالۍ کړم.

## Note: نوټ

Some times especially conversion the relative pronoun are omitted when the sentence has object case.

ځيني وختونه معمولاً کله چې په خبرو اترو يا مکالمه کې جمله مفعولي حالت ولري موصولي (ربطي) ضمير له منځه وړل کيږي.

Ex: مثال:

- This is the chair which he sits on. دغه څوکۍ ده چې هغه پري کښيني.
- This is the chair he sits on. دغه چوکۍ ده "چې" هغه پرې کښيني.

**Note:نوټ**

Some times the principal clause is divided into two parts by subordinating adjective clause.

ځيني وختونه اصلي قضيه د فرعي وصفي قضي په واسطه په دوو برخو وېشل کېږي.

Ex: The man whom I met yesterday is one of my old friends.

د اصلي قضي لومړۍ برخه — فـرعـي قـضـيـه — د اصلي قضيي دوهمه برخه

مثال: چا سره چې ما تېره ورځ ملاقات وکړ یو زما له ملګرو څخه و.

Ex: The house which he lives in is very beutiful.

د اصلي قضي لومړۍ برخه — فرعي قـضـيـه — د اصلي قضيي دوهمه برخه

مثال: کور چې هغه پکي ډېر ښکلی ژوند تېروي.

## 3) Adverb Clause: قـيـدي قـضـيـه

A group of words which has subject and predicate of the own and does the work of an adverb is called adverb clause.

هغه ګروپ د کليمو چې د مبتدا او خبر لرونکی وي او د "قـيـد" کار ترسره کړی د قيد ي قضيې په نوم يادېږي.

Ex: He did not study so he failed in the exam.

مثال: هغه درس و نه وايه نو په امتحان کې ناکام شو.

Ex: The thief escapted when he saw the police.

مثال: کله چې يې پوليس وليد غل وتښتېد.

Ex: If you study your lessons, you will succeed in the exam.

مثال: که چېرې ته خپل درسونه ووايې، په امتحان کې به کامياب شې.

# Additions to remarks
# ضمایم په نظریاتو(ملتیاوو)

Additions to remarks show coordination or discoordination between two persons or things.
ضمایم په نظریاتو د دوو اشخاصو یا دوو شیانو ترمنځ کې برابري او نا برابري ښکاره کوي.

Ex: He is an engineer and I am too. مثال: هغه یو انجنیر دی او زه هم.

Ex: He is a student but Ajmal is not. مثال: هغه یو زده کوونکی دی مګر اجمل ندی.

## Note: نوټ

Remark is the first longer sentence which expresses the first idea.
نظریه(بیانیه) لومړنۍ درازتره جمله ده چې لومړۍ مفکوره بیانوي.

Ex: Najeeb is a clever student. مثال: نجیب یو لایق زده کوونکی دی.

## Note:نوټ

Addition is the second shorter sentence which is added at the end of the remark and expresses the second idea.
د دوهمې لنډې ترې جملې ضمیمه ده چې د نظریې په اخیر کې اضافه کېږي او دوهمي مفکوره بیانوي.

Ex: Hikmat is too. مثال: حکمت هم.

## Note: نوټ

**1)** Affirmative additions to affirmative remarks are formed by: (Subject + auxiliary + too) or (So + auxiliary + Subject).

مثبت ضمایم په مثبتو نظریاتو د په (Subject + auxiliary + too) او (So + auxiliary + Subject) واسطه تشکیلېږي.

Ex: He comes to school and <u>I do too</u>. مثال: هغه ښوونځي ته راځي او زه هم.

Ex: He could play football well <u>so could his friends</u>.
مثال: هغه وکولاي شواى د فوټبال ښه لوبه وکړي او ملګري يې هم.

**2)** Negative additions to affirmative remarks are formed by: (But + Subject + negative auxiliary).

منفي ضمايم پر نظرياتو د (But + Subject + negative auxiliary) په واسطه تشکيلېږي.

Ex: He is a teacher <u>but I am not</u>. مثال: هغه يو ښوونکى دى مګر زه نه يم.

Ex: I saw him yesterday <u>but he didn't.</u> مثال: ما هغه تېره ورځ وليد مګر هغه زه ونه لېدم.

**3)** Affirmative additions to negative remarks are formed by: (But + Subject + auxiliary).

مثبت ضمايم په منفي نظرياتو د (But + Subject + auxiliary) په واسطه تشکيلېږي.

Ex: He can't speak Pashto <u>but I can</u>. مثال: هغه په پښتو خبرې نشي کولاى مګر زه يې کولاي شم.

Ex: Muhammad has failed <u>but I haven't</u>. مثال: محمد ناکام شوى دى مګر زه نه يم شوى.

**4)** Negative additions to negative remarks are formed by: (Sub + auxiliary + neither) and (Sub + negative auxiliary + either).

منفي ضمايم په منفي نظرياتو د (Sub + auxiliary + neither) او (Sub + negative auxiliary + either)
په واسطه تشکيلېږي.

Ex: I can not speak Urdu and <u>he can neither</u>.
مثال: زه په اُردو خبرې نشم کولاى او هغه يې هم نشي کولاى.

Ex: I will not fail in the exam and he <u>will not either</u>.
مثال: زه به په امتحان کې ناکام نشم او هغه به هم نشي.

# Simple Future in the past tense
# په تېره کې راتلوونکې ساده زمانه

| Helping verbs | کومکي فعلونه |
|---|---|
| Would / Should | Would / Should |

## Structure: ساختمان

| | |
|---|---|
| **Affirmative form** مثبت شکل | Sub + Would / Should + $V_1$ + Comp.<br>Ex: I would visit him in the park. مثال: زه به له هغه سره په پارک کې گورم. |
| **Question form** سواليه شکل | Would / Should + Sub + $V_1$ + Comp?<br>Ex: Would I visit him in the park? مثال: آيا زه به له هغه سره په پارک کې وگورم؟ |
| **Negative form** منفي شکل | Sub + Would / Should + Not + $V_1$ + Comp .<br>Ex: I would not visit him in the park. مثال: زه به له هغه سره په پارک کې ونه گورم. |
| **Negative interrogative form** منفي سواليه شکل | Would / Should +Sub + Not + $V_1$ + Comp -?<br>Ex: Would I not visit him in the park? مثال: آيا زه به له هغه سره په پارک کې ونه گورم؟<br>Wouldn't / Shouldn't + Sub + $V_1$ + Comp -?<br>Ex: Wouldn't I visit him in the park? مثال: آيا زه به له هغه سره په پارک کې ونه گورم؟ |

**1) Usage:** Simple future in the past is used to show an action which would take place at some specified time in the future of the past (a future that was considered future in the past time) but the action did not take place.

۱) **استعمال**: په تېره کې راتلوونکې ساده زمانه د هغه عمل د بيان لپاره استعمالېږي چې په تېر مشخص راتلوونکي وخت (هغه راتلوونکی چې په ماضي کې راتلوونکی وي) کې به سرته رسېده مگر عمل واقع شوی ندی.

**Note:** Future in the past tenses are usually followed by the improbable conditional sentences.

نوټ: په ماضي کې راتلونکي زمانې معمولاً د نامکنه شرطیه جملو په واسطه تعقیبیږي.

Ex: I would do as you said if I had time.

مثال: که چېري ما وخت درلودای ښه چې مې درته ویلي سرته مې رساوو.

Ex: I should happy, if I had money as you have.

مثال: که مې د ستا په څیر پیسې درلودای ، خوشحاله به وم.

Ex: You would not live such a small house, if you were a millinair.

مثال: که چېري ته میلونر وای، تا به په دومره کوچني کور کې ژوند نه کاوو.

# Future in the past continuous tense

# په تېره جاري کې راتلونکي زمانه

| Helping verbs | کومکي فعلونه |
|---|---|
| Would be / Should be | Would be / Should be |

**Structure:** ساختمان

| | |
|---|---|
| **Affirmative form** مثبت شکل | Sub + Would / Should + Be + $V_1$- ing + Comp.<br>Ex: He would be playing chess. مثال: هغه به د سطرنج په لوبه مصروف وي. |
| **Question form** سواليه شکل | Would / Should + Sub + Be + $V_1$- ing + Comp?<br>Ex: Would he be playing chess? مثال: آیا هغه به د سطرنج په لوبه مصروف وي؟ |
| **Negative form** منفي شکل | Sub + Would / Should + Not + Be + $V_1$- ing + Comp .<br>Ex: He would not be playing chess. مثال: هغه به د سطرنج په لوبه مصروف نه وي. |
| **Negative interrogative Form** منفي سواليه شکل | Would / Should + Sub + Not + Be + $V_1$- ing + Comp -?<br>Ex: Would he not be playing chess? مثال: آیا هغه به د سطرنج په لوبه مصروف نه وي؟<br>Wouldn't / Shouldn't + Sub + Be + $V_1$- ing + Comp -?<br>Ex: Wouldn't he be playing chess? مثال: آیا هغه به د سطرنج په لوبه مصروف نه وي؟ |

**1) Usage:** Future in the past continuous tense is used to show the duration of an action that would be in progress at some specified time in the future of the past but the action did not happen.

۱) **استعمال**: په تېره جاري کې راتلوونکې زمانه د هغه کار د جريان لپاره استعمالېږي چې په معين وخت کې به په راتلوونکې تېره زمانه کې د جريان په حالت کې وي مگر عمل ندی واقع شوی.

Ex: The kids would be going to the pool if the parents admitted them.
مثال: که چېري مور او پلار ماشومانو ته اجازه ورکړې وه هغوی به حوض ته تلل.

Ex: I would not be calling him if I didn't have a necessity.
مثال: که مې ضرورت نه درلودای ټيليفون مې ورته نه کاوو.

**نوټ:** دغه زمانه د راتلوونکي جاری زماني په ځاي په غيرمستقيم خبرو کښي استعمالېږي.

# Conjunction
# د وصل (ربط) توری

Conjunction is a word which is used to join two words, two sentences, two phrasws and two clauses.

د ربط توری هغه کليمه ده چې د دوو کليمو، دوو جملو، دوو شيانو او دوو قضيو د وصلولو لپاره استعمالېږي.

Ex: Arfan <u>and</u> Muzamil are brothers. مثال: عرفان <u>او</u> مزمل ورونه دي.

Ex: I was present <u>but</u> he was absent. مثال: زه حاضر وم <u>مگر</u> هغه غير حاضر وو.

- **Conjunction are divided into four parts:**

د ربط توري په څلورو برخو وېشل شوي دي:

1) Coordinating Conjunctions د وصل برابر، همقوه، همپايه توري
2) Correlative Conjunctions د وصل جوړه يي توري
3) Compound Conjunctions د وصل مرکب توري
4) Suberdinating Conjunctions د وصل فرعي توري

## 1) Coordinating Conjunctions: د وصل برابر، همقوه، همپايه توري

The coordinating conjunctions are used to join coordinating sentences.

د وصل برابر يا همپايه توري د دوو جملو د وصلولو لپاره استعمالېږي .

Ex: I am a doctor and he is a student. مثال: زه يو ډاکتر يم او هغه يو زده کوونکی دی.

☞ **The coordinating conjunction are divided into five parts:**
**د وصل برابر يا همقوه توري په پنځو برخو وېشل شوي دي:**

### A. Cumulative Conjunctions: د وصل زياتونكى (متراكم) توري

The cumulative conjunctions are used to one idea to another idea or one action to another action.

د وصل زياتونكي توري يوه مفكوره له بلې مفكورې سره يا يو عمل له بل عمل سره د وصلولو لپاره استعمالېږي.

| Some cumulative conjunctions ځيني د وصل متراكم توری | | | |
|---|---|---|---|
| And | او | Both .......... and | هم..........هم |
| Too | هم، همدارنگه | Neither ......... nor | نه ......... نه |
| Also | همدارنگه | Not only ..... but also | نه يوازي ...... بلکه |
| So | نو ، همداسي | As well as | همدارنگه ، اگرچه ، برعلاوه |

Ex: <u>Not only</u> he comes late <u>but also</u> complains.
مثال: هغه نه <u>يوازې</u> ناوخته راغي <u>بلکه</u> شکايت هم کوي.

### B. Alternative Conjunctions: د وصل اختياري توري

These conjunction express a choice between two actions or ideas.

د وصل دغه توري د دوو عملونو يا مفکورو ترمنځ انتخاب ښيي.

